# حڅرک

کالنۍ

څوارلسم کال، شپږمه، پرلپسې ۱۰۱مه گڼه،
سنبله۱۳۹۶ل ذي العقدة ۱۴۳۸هق، سپتمبر۲۰۱۷م

## د اشرف غني وېناته

## دنړۍ مشرانو ولې غوږ کېنښود؟

د کلمة التوحید پر حریم

**د یرغلگرو گستاخانه برید**

دموکراسی وآنگ سانسوچی مداوای

**برای روهنگیای ها ندارند**

دهندوستان او امریکا

**دستراتیژیکي ملگرتیا گډ اهداف او لوری!!**

دسپتمبر دخونړۍ پیښې

**د شپاړسمې کلیزې په اړه**

دعسکرو او طیارو رالېږل به

**دښمن ته څه گټه ولري؟**





**له هوا څخه د دروغوا جنو پاڼو شیندل**

**د اشغالگرو ضعف او شکست په گوته کوي!!**

لار ورکي لیکوالان!! ...






ځوارلسم کال، شپږمه، پرلپسې ۱۰۱مه ګڼه، سنبله۱۳۹۶ل،
ذي الحجة۱٤۳۸هـ ق، سپتمبر۲۰۱۷م

**امتیاز :**

**دا متیازخاوند :** دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :** عبید تنویر

**لیکوال پلاوی :** ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

**ګډون :**

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۲٤۰ کلداري |
| امریکا : | ۶۰ ډالره |
| اروپا : | ۶۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۱۵ افغانۍ<br>۲۵ کلداري |


**یادونه**

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه

**پتې :**

srak_111@yahoo.com

علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه

# لړلیک

بسم الله الرحمن الرحیم

سرمقاله

# د اشرف غني وينا ته

## دنړۍ مشرانو ولې غوږ کېنښود؟

دنړۍ د۱۹۳ هيوادونو دولسمشرانوپه گډون هرکال دسپټمبر دمیاشتې په نیمایي کې دملگرونو ملتونو سرمشریزه غونډه سرته رسيږي اوهغوي دخپلوهيوادونوپه استاځيتوب نوموړي غونډې ته وينا وي کوي

دافغانستان په استاځيتوب سږکال دکابل رژيم ولسمشر[اشرف غني] دملگروملتونوپه يادي غونډه کې گډون کړی وو خودنوموړي دويناپرمهال دهيوادونو زیاتره مشران اوسياسي استاځي ديته اماده نشول چې داشرف غني خبروته کښيني اوغوږ ورته ونيسي

دراپورونو له مخې کله چې اشرف غني ويناکوله د۱۹۳ ولسمشرانو اواستاځوپرځاي ايله پنځوس تنه په خپلوچوکيوناست وو پاتې ټول دناستې له هاله وتلي وو .

ترټولوړومبي بائيد داخبره روښانه کړوچې څوک دملگروملتونوکلنی غونډې ته ورځي هغه ياد هيوادونوولسمشران اويايې دړومبی کچې سياسي استاځي وي نودوئ دهيوادونواوبين المللي مسائيلواوروابطو ماهرين وي اوپه دې خبره پوهيږي چې دکوم هيواد ولسمشر۔ خبري کوي له سره ترپايه بايدورته غوږکيښودل شي،ځکه دهمدغې کلنی ناستې دويناله مخې دملتونو او هيوادونو سياسي نقش او لرليد تلل کيږی اوقضاوت ورباندي کيږي.

دويمه خبره داچې افغانستان هم له سياسي اوهم دستراتيژيک اهميت له مخې چې عملا هلته امريکايي اشغال اويوه خونړی جگړه دوام لري ددې وړدی چې په حالاتو اوجريانـاتويې نـړي اگـاهي ولـری، خوداچې دافغانستان لـه دومـره اهميت اوحساسيت بـاوجود دملگروملتونوپه ناسته کې دنړی اکثريت مشران ديته چمتونشول چې داشرف غني ويناته غوږکيږدی له شک پرته چې دادجدي پوښتنې اوتامل وړځای دی.

داسې بريښي چې دکابل اداره چې په اصل کې دامريکاحلقه بگوش رژيم دی اودامريکايانوله اجازي اورضايت پرته دهيڅ حرکت اوگام اخيستو واک اوصلاحيت نلري په نړيواله کچه يې نوراهميت اوموقعيت دومره پيکه اوځپل شوی چې دنړی مشران نور ددغه رژيم دواکمنو خبرو اوريدل هم دخپل وخت ضياع بولي اوچې چيرته هغوئ حضورپيداکوی اوبحث کوی هغه ځای ورته پريږدي .

نړی پوهيږي چې کابو ۱۷ کاله امريکا دوئ په دې تيرويستل چې لښکري يې دافغانستان دامن اوثبات لپاره تللي اوزيارباسي چې په افغانستان يوه نسبي اداره جوړه اودنظام ستني برقراري کړي په همدې پلمه يې په ملياردونو ډالر له هيوادونو څخه دبسپنواومرستوپه نوم واخيستل خوهيڅ ځای يې ونه نيو!!

اوس هم په افغانستان کې توده جگړه روانه ده، امريکايان دهيوادي بمباريو،ډرون حملو اونورو عملياتو په ترڅ کې هـره ورځ لسگونه ملکي افغانان وژني اودافغانستان ترنيمايي زياتي برخي دطالبانو تر حاکميت اوکنټرول لاندي دي ،کومي سيمي چې درژيم په لاس کې دي هلته فساد، انارشيزم، اختطافونه ،بدامنی اوچورچپاول اوج ته رسيدلی.

همدغه دليل اووجه ده چې دافغانستان دقضيې اوموضوع په رابطه نړيوال ذهنيت سخت مايوسه، ټکنی اوله بيزاريو ډک دی، دوئ په افغانستان کې روان جنگ دامريکايي منافعواوستراتيژيکو اهدافوزيږنده بولي اودکابل رژيم دامريکايي مافياپه پنجوکې گيراوښکيله اداره شميري.

دچارو دماهرينو په اند داشرف غني دوينا پرمهال دهيوادونو دمشرانو بايکاټ اودکنفرانس له هال څخه دهغوئ وتلو ثابتـه کـړه چې نړی دکابل په اداره کې نور داصلاحيت اوظرفيت نه ويني چې دافغانانو دملي ارادي اوخودمختاری کماحقه تمثيل وکړي اوپه نړيوال کچه له ځان سره دافغان ولس دقاطع ملاتړاورضايت باوروړاندي کړي، نوځکه اوس ورڅخه هيوادونه په ډاگه نفرت ښيي اوپه بين المللي کچه ورته کلک سرزنشت ورکوي .



# دټرامپ له ستراتیژۍ وروسته

## سیمه او نړۍ اړتیا لري چې د طالبانو حمایت وکړي!!

خبیر احمد م

د امریکا ولسمشر ( ټرامپ ) د افغانستان اوجنوبي اسیالپاره دخپلې جنګي ستراتیژي په اعلان سره په خپلوټولو هغو ژمنو پښه کیښوده چې دانتخاباتي کمپاین پرمهال یې امریکایي ولس ته وئیلي ووچې له افغانستان څخه به امریکایي پوځیان بیرته راغواړي اوخپل جګړییز ماموریت ته به دپای ټکی ږدي .

ټرامپ تراوږده انتظار ورسته درواني میلادي میاشتې په ۲۲ نیټه دافغانستان په اړه خپله راتلونکې ستراتیژي داسې اعلان کړه چې له افغانستان څخه به نه داچې خپل پوځیان نه راباسي، بلکې نوربه یې زیاتوي اوجګړه به تردې زیاته تودوي، ترڅودغه په اند خپل دښمنان وځپي

دټرامپ په ستراتیژي کې دافغانستان ګاونډي هیوادپاکستان ته مخامخ ګوته نیولې شوې چې ګواګي په خپله خاوره کې یې دامریکا دښمنانو ته پټن ځایونه ورکړي !!

دافغانستان اوجنوبي اسیالپاره دامریکادتازه تګلارې په غبرګون کې په پاکستان اوایران سربیره دسیمې مهمو قوتونواوهیوادونو لکه ( چین اوروسیې ) هم کلک مخالفت ښودلی هغوئ دټرامپ ستراتیژي غیري عملي اوله نفرت ډکه بللې .

روسیه ، چین اودسیمې نور هیوادونه استدلال کوي چې په کال ۲۰۱۰ کې دناټو دلیسبون په ناسته کې پریکړه شوې وه چې د ۲۰۱۴ کال ترپایه به خارجي قواوې له افغانستان څخه په تدریج وځي ، خوامریکایان په خپله ژمنه ونه دریدل اواوس چې امریکا دنامعلوم وخت لپاره په افغانستان کې خپل قوتونه ساتي دا دافغانستان اوسیمې لپاره دګټې پرځای زیان اړونکې اوله سولې اوثبات سره په ټکرکې شمیري .

له بل لوري په خپله امریکاکې هم دټرامپ په ستراتیژي کلکې نیوکې شوې اوهغه یې دامریکایي ولس له ګټواومنافعوسره ضدیاده کړې .

«فاکس نیوز» چې دامریکا مشهور تلویزون دی په خپلې ترسره کړې نظرپوښتنه کې یې معلومه کړې چې دامریکاپه سلوکې ۶۲ فیصده خلک افغانستان ته دنوروپوځیانوله استولواودجګړې داږدولوله پالیسۍ سره مخالفت لري په نوموړې نظرپوښتنه کې ۸ فیصده خلک غیري جانبدراه پاتې شوي اوایله ۲۹ فیصده خلکو د ټرامپ له ستراتیژۍ څخه ملاتړکړی

دغه ډول په افغانستان کې له هغویوشمیرخلکو پرته چې د امریکا

رسمي مامورين اوعملا يې له امتيازاتو برخمن دي په عموم کې افغانانو دامريکاله نوې تګلارې سره سخت مخالفت ښودلی اوهغه يې اصلا په افغانستان کې له چين ، روسيي ، ايران اوپاکستان سره دنوې پيليدونکي سيالی اوجګړې وسيله ياده کړي .

دچارو دکتونکوپه اند په افغانستان کې دامريکايي لښکرو مذيدشتون اودټرامپ له لوري په جګړيزې ماموريت ټينګار دافغانانوله ارادي اومصالحو سره چې هغه په افغانستان کې سوله اوثبات دی لويه دښمني ده.

څکه ۱۷ کاله امريکايان له خپل ټول جبراووحشت سره سره په دې ونتوانيدل چې خپل مخالفين کمزورې کړي اويادافغانستان په کومه وړه سيمه کې هم امن اوکراري راولي ، لدې ورسته خودغومخوته دامريکايانو رسيدل له امکانه ليري خبره ده .

دافغانانو انتظار داوه چې امريکايانو به له تيرو ترخو تجربوڅخه پنداخيستی وي اوپه نوي ستراتيژۍ کې به دزور اوجبر په ځای ارومرو په سوله اوروغه ټينګار شوي وي او دمعقوليت په رڼاکې به يې تصميم نيولی وي .

خوداسې ښکاري چې امريکايان دافغانستان موضوع اوحالت ديوې پلمي په توګه کاروي اوپه اصل کې غواړي افغانستان دجګړې ديوه ميدان په څيرپه خپل ګورت کې ترډيري مودي وساتي اودسيمي له نورو طاقتونوسره خپل رقابت ته دوام ورکړي.

همدغه دليل دی چې دچين اوروسيي په شمول مطرحو هيوادونو دټرامپ له اعلان شوي ستراتيژۍ ورسته دمخالفت صريح اورسمي موقفونه په ډاګه کړل.

نوله شک پرته وئيلي شو چې دامريکايانو دناپاکو اوبدوعزايموپه مقابل کې به سيمه اوګاونډ بې تفاوته نه شي پاته کيدلی او اورمرو به داسلامي امارت دبرحقي مبارزې اوپاکي داعيي هراړخيز تائيد اوملاتړته رادانګي.

# د هديرې قبرونه مو ليدلي دي؟

■ علامه طنطاوي

په هديره کې يو قبر ګورې چې په نورو قبرونو باندې وياړي. ښايسته مرمر يې ځليږي، ګلونه او غوټۍ يې خاندې، بل قبر ګورې چې د خاورو او دوړو طبقي وربانديې پرتې دي او خلک وربانديې تيريږي راتيريږي. دربيم قبر ګورې چې ښايي مړی يې له خاورو سره خاورې شوی وي. د قبرونو ظاهري بڼه يو له بل سره توپير لري خو په مينځ کې سره يوشان وي. دا ښکاره ده چې په مينځ کې يې وراسته هډوکي پراته وي، چې په دې ورستو هډوکو کې هيڅ فرق نشته. د يوه پادشاه کوپړۍ د يوه غله له کوپړۍ څخه هيڅ توپير نه لري. د يو قاضې د پښې وراسته هډوکي چې حکم يې صادر کړی او د يوه مجرم د پښې وراسته هډوکي چې حکم پرې صادر شوی وو هيڅ توپير نه لري. هيڅ داسې قبر نه شته چې ژوند يا مرګ مړي ته راوګرځوي ان که هغه د امپراتور قبر وي چې د ځمکې پر مخ تر ټولو ښايسته قبرهم وي.

د مړي له پاره په دې دنيا کې نيک ياديدل پاتې کيږي او د آخرت له پاره يې يوازې عمل پاتې کيږي. په دنيا کې شهرت او ياديدل بس يو سراب دی چې شاته هيڅ هم نه لري. يوازې نيک عمل دی چې پاتې کيږي او بس!




# د کلمة التوحید پر حریم
## د یرغلګرو ګستاخانه برید

عبدالرؤف حکمت

خبر شوي به یاست چې څو ورځې وړاندې یرغلګرو امریکایانو د پروان په ولایت کې داسې تبلیغاتي پاڼې له الوتکو څخه وپاشلې چې په هغه کې یې د کلمة التوحید( لا اله الا الله محمد رسول الله ) څرګند سپکاوی کړی و.په دې تبلیغاتي پاڼو کې خبیثو یرغلګرو د خپلو خبیثو ترجمانانو او ګوډاګیانو په توسط داسې انځور خپور کړی و چې په هغه کې یې کلمة التوحید د سپي په بدن باندې لیکلې وه. العیاذ بالله.

دا موضوع که څه هم په مطبوعاتو کې عادي تیره شوه او د امریکایانو د یوه عادي جنایت په نظر ورته وکتل شول. اما په حقیقت کې دا کومه عادي موضوع نه وه.دا جنایت ښایي په تیرو ۱٦ کلونو کې د یرغلګرو تر ټولو درونډ جنایت وي. یرغلګرو کله هم په دومره سپین سترګۍ او وقاحت د مسلمانانو تر ټولو مقدس او لوړ ارزښت ته توهین نه و اړولی او نه یې خپله اسلام دښمني او کفر دومره ډاګیز کړی و. خو د تأسف ځای دادی چې څومره دغه جنایت سنګین او غلیظ و په وړاندې یې د مسلمانانو عکس العمل دومره جدي نه و .

### د کلمې طیبې عظمت

که د کلمة التوحید عظمیت ته وګورو نو د پروان له دردوونکي فاجعې وروسته خو باید چې اسمانونه رانړیدلي وای. په غرونو زلزلې ګډې شوې وای، سمندرونه په جوش او څپو راغلي وای او له حق څخه د منحرفو انسانانو د بدمرغه اعمالو سزا یې ورکړې وای.

مګر دا د رب المتعال جل جلاله ځانګړې رحم دی او د هغه حلیم ذات په بردبارۍ ښکاره دلالت کوي چې له دومره ستر جرم او جنایت سره سره لا هم د انسانانو پر سر آسمان ولاړ او ځمکه یې تر پښو لاندې مستقره ده. لا هم د الله تعالی د عذاب ملائکو د ګناهګار او منحرف انسانیت له تعذیب او تنبیه څخه لاس نیولی او د الله تعالی د حساب او عذاب موعد ته به انتظار دي.

راځئ دلته د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د احادیثو په رڼا کې د کلمې طیبې( لا اله الا الله ) عظمت وڅیړو تر څو پوه شو چې دا له څو کلماتو جوړه جمله په حقیقت کې د څومره ستر شان او عظمت څښتنه ده.

عن ابي سعید الخدری رضی الله عنه عن رسول الله صلی الله علیه وسلم: قال موسی یا رب علمنی شیئاً أذکرک وأدعوک به، قال یا موسی: قل لا إله إلاَ الله، قال: کل عبادک یقولون هذا، قال: یا موسی لو أنَ السموات السبع وعامرهن غیری، والأرضین السبع فی کفه ولا إله إلاَ الله فی کفه، مالت بهنَ لا إله إلاَ الله. رواه النسائی و الحاکم و ابن حبان

ابوسعید خدري رضی الله عنه له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چې موسی علیه السلام وفرمایل:

اې ربه ماته داسې څه راوښیه چې په هغه سره ستا ذکر کوم او تا رابولم. الله تعالی ځواب ورکړ چې اې موسی! دا وایه ( لا اله الا الله ) موسی علیه السلام وویل چې دا خو ستا ټول بندګان وایي. الله تعالی ځواب ورکړ چې که چیرې ۷ واړه اسمانونه او هغه څه چې په آسمانونو کې دي او ۷ واړه ځمکې له الله تعالی پرته له ټولو موجوداتو سره، دا ټول که د تلې په یوه خوا کې وي او ( لا اله الا الله ) کلمه په بله خوا کې نو دا کلمه به وروباندې درنه وخیږي.

په بل حدیث شریف کې حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: یصاح برجل من أمتی علی رؤوس الخلائق یوم القیامه فینشر له تسعه وتسعون سجلاً، کل سجل منها مد البصر، ثم یقال أتنکر من هذا شیئاً، فیقول لا یا رب، فیقال: ألک عذر أو حسنه، فیهاب الرجل فیقول لا، فیقال: بلی إنَ لک عندنا حسنات، وإِنَه لا ظلم علیک، فیخرج له بطاقه فیها أشهد أن لا إله إلاَ الله، وأشهد أنَ محمداً عبده ورسوله، فیقول یا رب ما هذه البطاقه مع هذه السجلات، فیقال: أنَک لا تظلم، فتوضع السجلات فی کفه والبطاقه فی کفه فطاشت السجلات وثقلت البطاقه)). [الترمذی، والحاکم وغیرهما.[

د قیامت په ورځ به زما د امت په یوه کس باندې د خلکو په وړاندې اواز کیږي او د هغه د اعمالو ۹۹ دوسیې به وغوړول شي او هره دوسیه به د سترګو تر څاره پراخه وي. بیا به ورته وویل شي چې آیا له دې څخه انکار کوې؟ دغه انسان به ووایي چې نه ، زما ربه! ورته به وویل شي چې چې آیا کوم عذر یا نیکي لرې؟ نودا کس به وویریږي او وایې به، نه یې لرم.ورته وبه ویل شي چې داسې نه ده، له موږ سره ستا نیکی شته او په تا به ظلم نه کیږي. بیا به یې د اعمالو له منځه یو کارت( کوچنی صفحه ) را وایستل شي چې دا کلمه به وروباندې لیکلي وي( أشهد أن لا إله إلاَ الله، وأشهد أنَ محمداً عبده ورسوله ) دغه بنده به وایي چې اې زما ربه ددې کوچني کارت له دومره ډیرو دوسیو یا عملنامو سره څه مناسبت دی؟ ورته وبه ویل شي چې په تا به ظلم نه کیږي. بیا به دا ټولې د اعمالو دوسیې د تلې په یوه خوا کې واچول شي او هغه کوچنی کارت په بله خوا کې تردې چې هغه ټولې دوسیې به سپکې وخیږي او پله به یې پورته شي او د کلمې کارت به وروباندې درونه شي.

دغسې په نورو ډیرو احادیثو کې رسول الله صلی الله علیه وسلم د کلمة طیبې عظمت او فضیلت بیان کړی دی چې له مجموع اقوالو څخه دا څرګندیږي چې په هستی کې د الله تعالی له ذات اقدس څخه وروسته تر ټولو عظیم او سنګین حقیقت همدا کلمه ده. له دې څخه اټکل کولای شو چې زموږ دښمنانو څومره ستر جنایت کړی او د څومره عظیم او سنګین حقیقت د توهین هڅه یې کړې.

## آیا کلمه التوحید یوازې د طالبانو ده؟

په پروان ولایت کې د امریکایانو لخوا د کلمة التوحید د سپکاوي په موضوع کې تر ټولو عجیبه خبره دا وه چې په د نورو امریکایي جنایاتو په شان د دې موضوع په اړه هم په رسمي کچه یوازې طالبانو غبرګون وښود او په اجتماعي رسنیو کې هغو فعالانو وروباندې سخت عکس العمل وښود او د انتقام اخیستلو ګواښونه یې وکړل چې په افغانستان کې په روان جهاد باور لري او په یوه شکل د افغانستان له اسلامي امارت سره تړاو لري.

کله چې د موضوع په اړه د نورو اړخونو په چوپتیا اعتراضونه وشول نو بیا څو ورځې وروسته ځینو نورو اشخاصو او ډلو هم د موضوع په اړه لنډ اظهارات وکړل او د امریکایانو دا عمل یې وغانده.خو د کابل په تخت ناست د امریکایي یرغلګرو په معاش چلیدونکی رژیم او د یرغلګرو نور حلیفان، ډلې او اشخاص لکه د شورای نظار چارواکي چې ځانونه د



جهاد ټيکداران هم بولي. دغه راز عبد رب الرسول سياف چې يو وخت يې ځان د توحيد ستر داعي باله او اوس هم ځان تر ټولو واقعي مسلمان بولي. همدا راز ګلبدين حکمتيار چې ديانت او حق پالنه يوازې په ځان او خپل تنظيم کې منحصره بولي. مګر دوی يوه هم د امريکايانو ددې کريه جنايت په اړه د خولې چوله کولو جرئت ونه کړای شو او نه يې هم دې عظيم او نه بښونکي جرم ته د جرم په نظر وکتل.

دغو له اسلام او کلمة التوحيد سره جفا کوونکو ته به ووايو چې دې د خاموشۍ سياست خو مو څرګنده کړه چې هسې مو نوم د طالب او يا په اصطلاح ترهګر اچولی په حقيقت کې مو جنګ مخامخ له اسلام او کلمې سره پيل کړی. څکه په دغسې مواردو کې چوپتيا د رضا او يا هم بې پروايۍ نښه بلل کيږي او څوک چې د دغسې حساسو مسائلو په اړه بې پروا او بې دريځه پاته کيږي نو د ايمان د زيان له خطر سره مخامخ کيدلای شي.

سياف، حکمتيار، عطانور، قانوني، عبدالله، ګل اغا، اسمعيل خان او نورو ته به ووايو چې له تاسو خو هغه کرزی هم ښه شو چې تاسو به سګشوی او د امريکا لخوا ترييه شوی ايجنټ باله. د هغه هم لږتر لږه په دې موضوع کې زغم پای ته ورسيد او د امريکايانو دا عمل يې وغانده. هغه که څه هم ۱۴ کاله د امريکايانو په ټوک ګوزاره کوله خو دې څېره خوری دومره بې احساسه نکړ چې د دغسې حساسو جناياتو په اړه هم د خاموشۍ او مړتيې دريځ خپل کړي.

تاسو ته مو هم مشوره دا ده چې يو مخ هم د نامردۍ او منافقت جامې مه اغوندئ. لکه څنګه چې دعوه لرئ که يو وار مسلمان ياست بيا خو بايد چې په دغسې موضوعاتو کې خپل ايمان او اسلام ثابت کړئ او کنه اولس ته به مو باطني نفاق د لمر غوندې ظاهر او په ثبوت ورسيږي.

## د پای خبره

د يرغلګرو په پروان کې پاشل شويو تبليغاتي پاڼو يو بله خبره هم راڅرګنده کړه او که واضح ووايو په افغانستان د غربي يرغل او روانې جګړې له ماهيت څخه يې پرده پورته کړه. په دې تبليغاتي پاڼو کې داسې انځور جوړ شوی چې يو زمری چې اشغالګرو ورباندې ځان ته اشاره کړې په يوه بل حيوان پسې چې پر بدن يې کلمه طيبه ليکلې ده منډې وهي او په هغه د حملې کولو کوښښ کوي.

دا بدمرغه انځور له ټولې بدمرغۍ سره سره دا واقعيت هم روښانه کوي چې اشغالګرو امريکايانو که څه هم شعارونه يې د بيا ودانولو او بشري حقوقو را اخيستي مګر اصلي هدف يې د اسلام او مسلمانانو تهديدول او هغوی د حملې هدف ګرځول دي.

اوس به شايد ټولو ته روښانه شوي وي چې په روان مبارزه کې څوک د اسلام او مسلمانانو استازيتوب کوي او کوم اړخ پر اسلام او کلمه طيبه د يرغل په جنايت ککړ دي. هغه کسان چې لا هم د روان جهاد په حقانيت او فرضيت کې شکمن دي د يرغلګرو دا اعتراف ورته کافي دی چې د جګړې د ماهيت په اړه ټول شکوک يې له منځه لاړ شي.

# ملي اتل هغه څوک کیدای شي، چې جهاد اومبارزه یې ددین دلوړاوي لپاره کړي وي نه دقومي، تنظیمي اوشخصي اغراضوپه خاطر!!

لطیف ـ عزم

امریکایان چې کله په کوم هیوادیرغل وروړي، نوورسره همماله ددې کوشش هم پیلوي چې دهغه هیواددپرګنوترمنځ قومي، سمتي اونژادي توپیرونه راوپاروي اوزړي دفن شوي شخړي یې په مابین کې راژوندي کړي اوهغه څیرې پرې دواکمنو اومشاهیروپه توګه ومني چې دهغو په منځ کې ناولي کرداراومنفوره ماضي ولري ترڅوله همدې لاري امریکایان وکولای شي په اسانی سره دخپل شتون اویرغل غځولوته لاره اواره کړي اوڅه یې چې زړه غواړي له کوم خنډاومزاحمت پرته هغه عملي کړي.

مونږ ولیدل چې کله امریکایانوپه افغانستان یرغل کاوه نوهغوډلو، ټپلواوڅیروته یې لاس وراوږدکړاودخپلوغلامانوپه توګه یې ومنل چې یادپخواني کمونیستي رژیم پاتي شوني وو، یادغرب اوامریکاپه هوټلونواونایټ کلبونوکې مصروفي لویدلي څیري وي اویاهغه توپک ماراوجنګسالاران ول چې دجهادپه نامه یې دافغانانودڅوارلس کلن جهادپاکي هیلي اوارمانونه له خاوروسره خاوري کړل، دافغانستان ملي شتمنی یې چوراوچپاول کړي اوقدرت دساتلولپاره یې دخپل منځي جګړو اوتباهیواساس کیښود

امریکایانوپه نوبت دغه پرسوده اولوغړني څیرې دافغانانوپه برخلیک اوسرنوشت وګومارلي اوله تیرو۱۷ کلونوراهیسي دخپل ضرورت اوارتیاله مخي غه بې ضمیره خلک دقدرت په ګدی کینول اوپریمانه ډالریې ورکړل ترڅوهغه مجاهدافغانان وټکوي چې په رګونوکې یې دحریت اوافغانیت وینه ګرځي اوامریکایي غلامی ته غاړه نه ږدي.

دغه راز امریکایانو ددې لپاره چې په افغانستان کې میشت قومونه دیوبل ابدي دښمنان معرفي کړي اویوبل وغندي نودتیرو۱۷ کلونوپه اوږدوکې یې کله یوقوم ته داذهنیت ورکړچې ته اکثریت یې اوتربل هرچا زیات حقداریې چې دافغانستان په برخلیک ټاکلوکې رول ولوبوي، بل قوم یې بیاپه دې نوم په شاوټپاوه چې ستاحقوق غصب شوي ته بائیدمیدان ته راووزي مجادله اومزاحمت پیل کړي،

په همدې ډول یې یوه قوم ته یې ووئیل چې یوازې ستامشاهیرددې هیواد ملي اتلان ګرځیدای



شي بل څوک ددې حق نلري چې ځانته ملي اتل ووايي نوراووځي غورځنګونه وکړي ، اتهونه واچوي اوشملي وښوروي

نوریې بیا دیته وتړل چې زیاته مرګ ژوبله ستاسي شوي اوستاسي مشرزمونږ دراتګ په لارکې قرباني شوی نودملي اتلولی اوملي قهرمانی حقدارصرف اوصرف تاسي یاست نو دکال په فلانی ورځ ښه په جوش اوخروش راوځي برچې اوتوپکي راباسي اوژوندي انسانان ترخپلوموټرونولاندي کوي!!

دافغانستان په میشتوقومونواوملیتونوغږکوو چې دامریکایانوچالونواوفریبونوته سخت متوجه ووسي ، خپل اصيل فهم اودرک له لاسه ورنکړي هغه څوک دخپلومشاهرواونومیالیوپه توګه کله هم قبول نکړي چې امریکایان یې تاسې ته دملي اتلانوپه توګه معرفي کوي.

دافغانانوملي اتلان اوقهرمانان هغه څوک دي چې دانګريزانو ، روسانواوامریکایانودیرغلونوپه مقابل خاص دالله تعالی درضا اوددیني اوملي ارزښتونودخوندیتوب په مینه اوجذبه جنګیدلي وي اوشاته یې ستړې حماسي اوقهرمانی پرې ایښي وي

نه هغه څوک چې دقوم ، ژبې اوسمت په خاطرې وسله راپورته کړي وي له ورايه دجهاداواسلام دعوداروي خوپه فکر اوعمل کې دانګريزانو ، روسانو اوامریکایانو تالیځتی اوله سرته ترپښو دهغوئ نوکر وي ، مونږ بايدويښ ووسو دقضاوت معيار موبائيد ديني مفاهيم اولوړ افغاني ارزښتونه وي نه قومي اوسمتي دلائيل اویاهغه تبلیغات چې امریکایان اویا دامریکایانو لوډسپیکرونه یې چې مونږته کوي ، مونږ بائيد په لوړاواز داخبره بدرګه کړو اووایوچې زمونږ ملي اتل اوملي قهرمان هغه څوک دی چې جهاد ، عمل اوټول کړه وړه یې دالله ددين دلوړاوي اوسربلندي لپاره وي نه دنوروااغراضو اوموخوپه خاطر

# د سپیڅلې کلیمې

## د سپکاوي خلاف مجرمانه چوپتیا ولې...؟

بشیر ارمان

د شاوخوا شپاړسو کلو راهیسې ز ما په ګډون یوشمیر قلموال او لیکوال پخپلو ماټو ګوډو لیکنو کې لګیادي پخپلو لیکنو کې نړیوالو ته د افغانانو د باتورۍ،قهرمانۍ، میړانې، میلمه پالنې او اسلام پالنې پیغام تصویر دوړاندې کولو کوښښ کوي...

ګواکي افغان په نړۍ کې هغه غیرتي، میړني او زړور قام دی چې پخپله خاوره او هېواد کې دپردیو او یرغلګرولـه شتونه سخته کرکه او نفرت لري، کـه افغانان بې وزلان ، خواران اوفقیران دي، پرلپسې جنګونو او یرغلونو ځپلي خو نا مردان او ناځوانه نه دي، هغوی په وطن، حیا او ناموس خپل سرونه بایلي لیکن دچا تیری او تجاوز نه زغمي.

افغانان په دین، عقیده او ایمان دومره ټینګ ولاړدي چې تـري دخپلو مالونو او ځانونو قربانول ستر ثواب او ویاړبولي، کـه د هر چا لـه لوري د دوی دین، عقیدې او مقدساتو ته په سپک نظر کتل شوي لـه هغوی نـه یـې ډېرژر سترګې رډې راویستلې او رته دخپلو بدو کړنو سزاپې ورکړې...

په دې علاوه افغان یو داسې دردمن،مهربان او همدرد ولس دی چې تل یې دمظلوم په دفاع کې دظالم لاسونه غوڅ کړي او دخپل ایماني او ملي ځواک په مټو یې مظلومانوته دظالمانو دمونګلو څخه نجات ورکړی .او هم دحق په ویلو او دحق نه په پیروۍ کولو کې دهر جابر او کبرجن ځواک په وړاندې یې برملا اوپه ښکاره دحق ناره پورته کړې...

متأسفانه په داوروستیو کې پرلپسې څو پیښو له امله ماته پخپلو دغو پورتنو عزایموکې شک پیداشوی، څورځې دمخه په پروان او کاپیساه ولایتونو کې امریکایانو دالوتکو له لارې داسې پاڼې اوشیندلې چې پ کې دتوحید سپېڅلې او مقدسه کلمه(لا اله الا الله محمد رسول الله) یې د یو سپي په شاه رسم کړې وه .... په دې زما په څېر ډېرخلک دخفګان ترڅنګ منتظر ول اوس به دامریکایانو ددې نه ښښونکي جرم په غبر ګون کې دافغانستان لویشت؛ لویشت زمکه امریکا یانو لپاره په سره انګار بدله شي، په ټول هېواد کې به دامریکایانو په ضد دخلکو قهر جنې څپې غورځنګونه وکړې ، ولسونه او پرګنې به دامریکایانو په خلاف راپورته او پاڅون و کړي، چې دامریکا اجیران او مزدوران به له هېواده تیښتې اړشي آن داجیرې اردو دننه به غبرګونونه راوپاریږي ،دهېواد پوهنتونه ، لیسې او تعلیمي مرکزونه به دانقلابي ځوانانو دپاڅونو شاهدان وي او په دې توګه به ټول ولس په اهتزاز او حرکت کې شي...



ډالرو پـه بدل کې داکثریت خلکو ایمان، غیرت، ضـمیر او دینـي احسـاس پیرلـی، کـه اوس هغـوی هرڅـومره جنایتونـه، خیانتونـه ، ظلمونـه او ددینـي مقدسـاتو سپکاوي کوي چاته وپړي ننګ نه ورځي او نه څوک یـې پـه ضـد غـږ پورتـه کـولی شي ولـې ضـمیرونه مړشـوي اوچې هر کله دیو انسان ضمیر مړ شي بیا هغه ته هیڅ دیني ارزښت څه معنی نلري ، نن ورز دافغان ولس اجتماعـي ضـمیر مـړدی ځکـه امریکایـان پـه ښـکاره داسلام مقدسات توهینوي....

دیو داسې ولس په حیث چې ماضې یـې داسـلام نـه ددفـاع لاره کـې لـه شاندارو کارنامونه عبارت ده، یو داسې قام چې نیږدې ټولې جنوبي ایشـیا تـه اسلام هغه رسولی او پخوانیو سلاطینو او فاتحینو یې دهند پـه نیمـه وچـه کـې داسلام او مسلمانانو پـه دفاع کې لوې جګړې ګټلې نن ولې هغه داسلام او دین څخه دومره بې پروا اوغافل شو چې دخپل چم په لارو او کوڅـو کـې یـې دعظیم الشان قرآن او دکلیمې توهین کېږي او دی ورباندې غبرګون قدرې هم نه ښیي ! داځای ددیني ټولنو او حلقـو لپـاره داندیښنې وړدی بایـد هغـوی یـې لـه املـه اندیښمن شي چې ایا خدای مکړه دولس ځوان نسل دخپلې ماضې نـه پـه بدلـه لار روان دی اوکه بله پیښه ده؟ دتعجب او افسوس وړده دافغانانو په وطن کې اسلام او کلیمه توهین کیږي خلک یې په وړاندې کوم غبرګون نه ښیي؟ په دې سره به بیا هم داولس ځان ته دژوندحق غواړي ! ورته دژونـد پـه ځـای مـرګ ډیره غوره دی! ځکه ډارن او بزدل قـوم حـق نلـري چـې هغـه دخـدای پـه زمکـه ژوندوکړي ! هغه قوم چې پخپله عقیده او دین د تیری کوونکو ککړی پـه وینـو کې نشي رغړولی دهغه شتون پر زمکه دروند بوج دی

ډېرپـه تمه وو چې دکلمې طیبې دتـوهین وروسـته بـه اسمان راونړیـږي ، زمکه به وچـادیږي. غرونـه بـه راولټـې، سـمندرونه او دریابونـه بـه ځپـې وکـړي، قومونه اوښارونه به برباد او هلاک شي، په زرګونو ځوانـان بـه خپلـې ککـرۍ پـه لاسو کې ونیسې او دامریکایانو ددې ستر او نه بښونکي جنایـت پـه وړانـدې بـه پورته شي افسوس چې پـه عملـي ډګـر کـې پـه دې اړه لـه سره کـوم خوځښـت ترسترګونشـو حتـی دچـاسره دغـم و درد احسـاس پیـدا نشـو چـې یرغلګـر

خو افسوس ! چـې دا یوکـار هـم او نـه شـو!!دجزئي احتجـاج پرته هغسې چې تمه وه یا ورتـه اړتیا او ضرورت وو ترسره نشـول بلکې پـه ټـول هېـواد یـوه داسـې مجرمانه خپسه ختلې چې دهغې له ډاره هرچا چوپتیا روژه ونیوه...

که دمسلمان په حیث سوچ او فکـر وکـړو ددې وروسـته نـور څه پاتې دي چې هغه امریکایـانو لا دهغـو تـوهین نـدی کـړی؟ دکلیمې طیبې، عظیم الشان قرآن او درسو الله ﷺ دذات مبارک دتوهینولو وروسته نورڅه نشته .... داسـلام او مسـلمانانو د دینه زیات سپکاوی نشي کیـدای ؟ یقیناً نشي کیدای!! لیکن ټولـه اسـلامي نـړۍ پـري غلـې اوهیـڅ غبرګون نه ښیي...

مسـلمانو ورونـو ! لـږ فکـر وکـړئ! مـونږ ولـې دې مرحلـې تـه ورسـیدو؟ امریکایـان دڅـو پـه

امریکایان په ترڅو د دوی دین ، ایمان او مقدسات توهین کوي او دوی به ورته لاس ترزنې ناست وي ؟

باور وکړئ ! ددې ژوند نه مرګ څو ځله غوره دی ،ښکاري چې دافغان قوم ملي حمیت او غیرت ددیمکراسۍ په الحادي څپو کې لاهو شوی دی دغلامۍ او محکومیت نحوست دومره ډارولي چې اوس دخپلو دیني ارزښتونو دساتنې او دفاع کولو نه هم ځانونه معذور بولي.

په خاصه تو ګه دکابل دهغو درباري ملایانو کردار خو ډېر مردود او دغندلو وړ دی چې پرون یې دجشن په مراسمو کې دموسیقۍ غړولو پرضد لاریونونه ایستل دکابل واټونه یې له شور او زوږ نه ډک وو او اوس د دومره لویې پیښې په باب هیڅ



اونکړل؛ او پري ګونګ او غلي پاته دي! اخر ولې ؟ دامریکا دخفګان ویره ورسره ده که کوم بل علت؟ ښکاره ده هغوی دخدای جَلَّجَلَالُهُ په ځای دامریکا نه ډاریږي، دهغو خولې ګنډل شوې ، ضمیرونه یې قید شوي ، هیڅ ډول ازادې او استقلال نلري یواځې دڅو پیسو مندلو په غرض یې حق پټ کړی او دباطل په وړاندې یې سرونه ښکته نیولي....

هو! اوس هم لا فرصت لرو باید زمونږ دیني حلقات اوټولنې خپلې مجرمانه تیروتنې جبیره کړې او پخپل کړي غفلت دي توبه او کاږي ، له ځانو څخه دې دبزدلۍ کمپله او غورځوي دخپلو دیني او ملي ارزښتونو څخه ددفاع کولو لپاره دولس د ذهنیت په جوړولو کې ونډه واخلي کنه هغه ورځ به هم دوی ووینې چې امریکا په ښکاره افغانستان کې ددیني شعایرو په لمانځلو بندیزونه اولګوي، افغانستان کې هم لکه دغرب پشان دمیرمنو حجاب کول ناقانوني او ګرځوي ، داسلامي زده کړو په بهیر قیودات نافذ کړي ، دشریعت شته لږ ډېر قوانین لغوه اعلان کړي همدا اوس دامریکایې تالارو دننه په دې بحثونه او سلاوې رواني دې چې څنګه افغانان دخپل دین څخه لري کړو؟ څنګه نوی افغان نسل داسلامي زده کړو نه محروم کړو؟ څنګه دافغانانو اسلامي او افغاني تشخصات له منځه یوسو؟

زما په فکر ددېنه زیاتې درنې امتحانې شیبې زمونږ په هېواد او خلکو راتلو نکې دي خو کاشکې! مونږ دیو مسلمان ملت په توګه دا ثابته کړو چې دلته دلا اله الا الله محمد رسول الله کلیمې سره دمحبت اوعشق مینه دومره په څپوده چې لکونه ککرۍ تري ځاریدل غواړي او که امریکایان هرڅومره وحشتونه ، ظلمونه او مرګونه وکړي خو زمونږ دولس عقیدوي مسیر به تغیر نکړي څنګه چې په دې ارمان کې د انګریز او شوروي هډوکي خاورې شول هم داسې به دامریکډوکي خاوري شي

ان شاء الله



# د سبتمبر د خونړۍ پیښې

## د شپاړلسمې کلیزې په اړه

شاهد (غزنیوال)

پوره شپاړلس کاله وړاندې په همدې ورځو شپو کې د سپتمبر خونړۍ پیښه رامنځته شوه.

امریکایانو د دغې خونړۍ دپیښې دغچ اخیستنې په پلمه پر افغانستان برید وکړاو دلته یې د افغانستان مسلمان ولس د یوه اسلامي نظام له واکمنۍ څخه محروم کړ.

د سږني کال د یولسم سپتمبر۱٦ کلیزه په داسې حال کې په امریکایانو باندې راځي چې هغوئ په افغانستان کې له بشپړ شکست سره مخ او نور ورته هیڅ داسې موجه او لامل نه دې پاتې چې ددغې ناروا جګړې د غزولو لپاره ترې کاروا خلي.

یرغلګرو امریکایانو چې ۱٦ کاله مخکې تردغې پلمې لاندې د افغانانو او مسلمانانو په خلاف کومه جګړه اعلان کړه هغې نورد الله تعالی په نصرت او افغان غیرتي ولس د برحق جهاد په برکت خپل ټول زوربايللی او ظالم جګړه ماران امریکا او ناټو یې د جګړې په میدان کې په ګونډو دي.

د دغې صلیبي جګړې په ترڅ کې که د سلګونو زره مظلومو افغانانو وینې وبهیدې خو یرغلګرو امریکایانو او د هغوئ په تبلیغاتو تیر ایستل شویو نړیوالوایتلافیانو ته یې هم تاریخي شکست ورکړ.

ویاړمنو افغانانو له خپل دین اوهیواد څخه د دفاع په دغې مقدسې جګړې کې یرغلګرو ته دا په اثبات ورسوله چې د سپتمر د پیښې دانتقام پلمه په افغانستان باندې ستاسویرغل هیڅ قانوني او اخلاقي توجیه نه لري اوتاسو چې په دې لاره کې څه کړې اویا یې کوئ هغه هرڅه ستاسې د وحشت ، ظلم او بربریت ښکارندوینه کوي ، ځکه د سپتمبر د یولسمې په پیښه کې نه افغانان د خیل او نه تاسو تراوسه پوري په دې اړه کوم موجه او منطقي دلیل ارائه کړای شو.

تردغې نا معقولې پلمې لاندې په افغانستان کې امریکایي او د هغوی دغربي ایتلافیانو پوځي شتون هم د ټولې سیمې د بی ثباتې لامل ګرځیدلې،او هم یې خپله هغوي ته په خپلو هیوادونو کې امنیتي او پوځي ستونزې راپیداکړي دي.

سره له دې چې امریکایي چارواکو د خپل هیواد او ولس د امنیت ساتلو ترپلمه لاندې د افغانستان د اشغال په ناروا جګړه کې ډیر پوځي او اقتصادي لګښتونه وکړل اوپه زرګونو امریکایي پوځیان یې



دافغانانو په لاس ووژل شــول ،خــو نن بیاهم امریکایي وګړي پــه ټولــه نړۍ کې مصؤنیت نه لري ، بلکې په هرهیواد او هرځــای کــې هغــوی د مرګ تر ګواښ لاندې او هرڅوک یــې وژل د ځان حق بولي ، دا ځکه چــې دوئ ټول نړیوال ثبات ګواښــلی او د خپلو شومو عزائمو له امله یې ټوله نړۍ له خطر سره مخ کړې ده.

په امریکایي ولس باندې د سپتمبر د پیښې ۱۶ کلیزه په داســې حــال کې راځي چې د هغوي نوي احمق مشرتابه (ټرمپ) د افغانستان د اشــغال غزولو په پلمه جنګي ستراتیژۍ اعلان کــړې او د هغــې تنفیــذ یــې هــم د بمونو په اورولو، مظلومــو ولسيـ افغانــانو وژلــو او د هغــوی د ختینــو جونګړو په ورانولو سره پیل کړې ده.

له بده مرغه چې امریکایي قیادت او ولس یې له هغو واقعیتونو څخه هیڅ عبرت نه دی اخیستی کوم چې دوی د اشغال په دې اوږده او ناکــامې جګړې کې ورسره مخ شوي دي .

له امریکایي اشغال سره د افغان مجاهــد ولــس د برحــق مقاومــت د حقانیت تر ټولو ستر واقعیت دا دی چې هغه د هیڅ مادي قوت له شــتون پرته د نړۍ د ترټولو سترنظامي ځواک امریکا او ناټو پــه مقابــل کــې پــه بریالتوب سره جریان لري.

پرون که افغانانو په همدغسي یوه بیساري مقاومت کې د سره پــوځ مقابله وکړه او هغه یې په ګونډو کړ خو تر شایي د همدي امریکایانو او د هغوی د ټولو غربي ایتلافیانو پــوځي ، ســیاسي او لوجیســتیکي حمایــت موجود و.

خو د یرغلګــرو خــلاف ننــی مقاومــت د افغانــانو لخــوا پــه داســې یواځیتوب پرمخ بیول کیږي چې حتی هغه پــروني پــه اصــطلاح جهــادي رهبران هم تر صلیبي څــغ لانــدې لــه اشغالګرو سره مل او د خپل ولس پــر خلاف یې سنګر نیولی دی.

په ټوله نــړۍ کــې هــیڅ داســې رسمي ځواک او جهت نه شته چــې د دوي حمایت وکړي ، خو لله الحمد چې مقاومــت یــې بیــا هــم تــر پــروني مقاومت ډیرمنظم، منسجم، متحد او بریالی دی.

چې دا هرڅه د دې مقاومــت پــه حقانیت او مشروعیت دلالت کوي او د دې موفقیت ترشا یواځې هغه اللهی نصرت دی کوم چې د ټولو موفقیتونو او بریاوو اصل دی.

و ما یعلم جنود ربک الا هو...

د صلیبي یرغلګرو او د هغــوی د ملاتړو مخ دي تور وي .

# دسپټمبر یوولسمه

تراب افغان

د سپټمبر د یوولسمې پر ټولو ابعادو د کره معلوماتو په هکله لا تر اوسه هم توافق او "د نظر یووالی" شتون نلري او دا پېښه د يوې لاينحل "معمې" په توګه پاتې ده.

ولې يوه خبره يقيني او له شکه وتلې چې امريکايان پرځای ددې چې د پېښې اصلي عاملين، له کره معلوماتو او شواهدو سره نړيوالو ته وړاندې او پر بنسټ يې اقدام وکړي؛ بلکې په ډېره نېرنګي او چالاکي يې ټول نړيوال کفر، او مذبذبه مسلمان هيوادونه له ځان سره متحد کړل؛ ترڅو واقعی حق پرست مسلمانان؛ اسلامي خوځښتونو اضمحلال او په کامله توګه له منځه يوسي؛ چې په دې شوم هدف او پلان کې تر ډېره حده بريالي هم شول.

د همدې شوم پلان له مخې يې لومړی پر ګران اسلامي ټاټوبي افغانستان له خپلو اشربانو سره هجوم او يرغل راوړ؛ او بيا يې سلسلة نور اسلامي هيوادونه او اسلامي خوځښتونه هدف وګرځول.

له بابا آدمه تر دې دمه د حق او باطل معرکه راروانه ده او لا به هم تر قيامته جاري وي؛ البته کفارو تل له دې وېرې چې په وړاندې به يې د مسلمانانو لخوا هم صف بندي وشی په ډېر مکر او فريب د معرکې بڼه تغير کړې او دا د حق او باطل معرکه يې پر يو او بل نوم نومولې.

خو د تعجب او حيرت خبره داده چې قاصر الفکره، خالي الذهنه ناخبره پر نوم مسلمانان يې غولولي او له ځان سره يې متحد کړي او له خپلو حق پرسته مسلمانو وروڼو سره يې په لومړۍ جبهه کې جنګولي او تل يې د سوند موادو کار ترينه اخستی.

په دا لنډه او نږدې زمانه کې ښه او واضحه بيلګه يې امريکايي يرغل وو چې اوائلو کې يې دا جګړه پر "صليبي جګړه" اعلان کړه.

له دې امله چې د نړۍ د مسلمانانو احساسات کم او کنټرول کړي او پرېنږدي چې په وړاندې يې امة مسلمه په واحد صف کې ودرېږي؛ نو ډېر ژر يې د "صليبي جګړې" بڼه او عنوان پر ترهګرۍ او تروريزم بدله کړه.

دا له دې کبله چې کفار له مسلمانانو سر ه هيڅکله د کفر، باطل او صليب پر عنوان مقابله او جګړه نه کولای شي او نه کټلای شي.

بلکې لومړی به مسلمان پر يو او بل نوم بد نامويي لکه څنګه يې چې زمونږ ګران او خوږ پيغمبر "ص" ته نعوذو بالله د ساحر، مجنون او...القاب

کارولي نو بعیده نده چې اوس هم پر دین او اسلام مینو سوچه مسلمانانو ته د دهشتګر، تروریست، اسلامپال، بنسټپال او... القاب وکاروي.

لکن متأسفانه او بدبختانه چې ډېری ضعیف الایمانه او پر نوم مسلمانان د کفارو پر شعارونو ډېر ژر خطاء کېږي او بیا ډېر ژر همدا غولېدلي مسلمانان د کفارو تر ټولو اولین او مخلص متحدین شي.

د امة مسلمه ځوانانو تل وېښ، بیدار او خپل مسئولیت ته متوجه اوسئ! چې کفار د مختلفو هیوادو، ژبو او نژادونو د خپل باطل او منسوخ دین ددفاع لپاره له هر کونج او کنار ددنیا اتفاق او اشر کولای شي نو ای د امة مسلمه ځوانانو پر تاسو څه ټکه رالوېدلې چې د حق، کامل او ناسخ دین لپاره نشي متحد کیدلای؟

دا اوس چې د نړۍ په ګوټ ګوټ کې مسلمانان د کفارو له هرقسم ظلمونو، شکنجو او تعذیبونو لاندې دي چې ویډیوګانې او انځورېزې صحنې یې تاسوئ پخپله په سوشل میډیا کې ګورئ ایا دا ټول مسلمانان دهشتګر، تروریستان، طالبان او... دي.

نو هی د امة مسلمه ځوانانو تر څو به د کفارو پر کاذبو شعارونو او نېرنګونو غولېږئ!

ترڅو به مو خپل وروڼه او خویندې د اور په لمبو کې لولپه کېږي او تاسې به یې پر رډو رډو ننداره کوئ! ترڅو به تاسې د تاندې ځوانۍ په سینګار نه مړیږئ!

پر دین او اسلام به کله غیرت کوئ!

د خپلې پتمنې خور آه او کړیکې به مو کله راپاڅوئ!

بالاخره د یو اسلامي او وجداني غیرت پر بنسټ راپاڅېږي الهي مسئولیت اداء کړئ او دېته متوجه شئ چې د "سپټمبر یوولسمه" پېښه د کفارو لخوا په تېر او نېږدې راتلونکي کې د مسلمان دنسل ختمونې، اسلامي شعائرو د له منځه وړنې لپاره تر ټولو لوی اتحاد او اشر دی نو د مستضعفو مظلومو مسلمانانو پرګنو د نجات لپاره پر سر، مال، توره، قلم، ژبه او ټولو شته امکاناتو راودانګئ او نور د نندارې او سکوت کلچر مات کړئ!

## عبرتناکه ټکي

کله چې د خلکو په سترګو کې نېک او ښکلي ښکارېدې نو پوه شه چې هغوی ته ستا ټول ښایسته او نېک کارونه ښکاري چې الله یې توفیق درکړی، او ستا پر هغو بدو کړنو نه دي خبر چې الله پرې پرده اچولې، نو د الله شکر وباسه او ډېر مه غره کېږه.

کله هم که غواړې چې نېکبخته و اوسې نو تېرو یادونو پسې مه ګرځه، مه هغو کسانو پسې ګرځه چې ستا په کیسه کې نه دي، ځکه هېڅوک د چاپسې نه مري او د هېرې په نعمت شکر وباسه.

ځان په دې ډېر مه ستړی کوه چې له نورو غوره او نېک سړی شې، بلکې ددې هڅه وکړه، چې له خپل پخواني څخه نور هم ښه سړی شې.

کله چې عقلونه د نورو د عقلونو په اړه فکر کوي کوچني کېږي، خو که عقل د خپل ځان په اړه فکر وکړي نو غټېږي.

په سختو دریځونو کې چېټیا درنښت زېږوي او برعکس چغې، نا آرامي، نفرت او کینه.

په خپل ښکلي اندام، ښکلي لباس او ظاهري ښکلا سره په ډېر فخر د سقراط مخکې ودرېد، نو سقراط ورته وویل: ته وګرېږه، چې د خبرو په رڼا کې دې شخصیت وتلم.

له حکیم نه یې وپوښتل څوک چې تاته ضرر دررسوي ته ولې ترې غچ نه اخلې؟ هغه ورته په خندا کې وویل: زه هم هغه سپی وداړم کوم چې زه داړلی یم؟



# آیا امریکایان اشغالگر دي او که نه؟؟

یاسر افغان

داسې وخت دی چې چاته خبره کوی نو مجبور یې چې په دلایلو یې ورته ثابته کړی، کنه نو خبره دې ځای نه نیسي، دا ښه خبره ده چې زموږ ملت هم پوه شوی او د خپل دوست او دښمن فرق کولی شي، پرون که روسان د دوستانو په جامه کې راغلل، افغان ولس یې د دوستۍ ترخه وڅکل، په ننیو امریکایانو به مرکب جاهل تېر وځي، کنه نو چې د دې ملت اصیل بچی وي، دریغه چې پرې تېر وځي.

د امریکایي میډیا ډنډورچیان هڅه کوي چې افغان ملت ته د اشغال بدل شوی او خود ساخته تعریف وکړي او ورته په خپلو جاهلانه دلایلو ثابته کړي چې امریکایان اشغالگر نه دي، دا د خدای جل جلاله په لوی عالم کې تر ټولو ذلیله طبقه د یو داسې کار په کولو گومارل شوي، چې شروع او پایله دواړه یې د شرم او عبرت سبب دي، دوی دا هیره کړې چې افغان مجاهد ملت لا د تنظیمي جگړو پر مهال پوهېده چې امریکا زموږ د دین، خاورې او عزت دښمنه ده او بل دا چې امریکایي کافران یې د دین او هویت په ختمولو کې هیڅ ناغیرې نه کوي، نن ورځ چې عملاً امریکا د نړیوال کفر رهبري پر غاړه لري، دلته یې هم ناوړه قدمونه را رسیدلي او زموږ هېواد یې په مطلق ډول اشغال کړی دی.

که څوک فکر کوي چې اشغال یواځې هغه حالت ته وایي چې د یو هېواد پر وگړو دیني بندیزونه ولگیږي، قانون، نظام او... یې ټول عملاً او مستقیماً رانسکور او پر ځای یې کوم خارجي تبع د واک پر گدۍ سریښ شي، نو بس دغه اشغال دی او بل ډول نه لري، نو دوی ته دې وویل شي چې که دا هر څه پخپل ځای وي بیا هم اشغالگر اشغالگر بلل کېږي. دا مې پر دې پورې وویل چې په ټولنیزو رسنیو کې د سي آی ای د تنخوا خورو لپاره لویه ستونزه داده چې څه ډول افغانان پر دې قانع کړي چې امریکایان اشغالگر نه دي، او داسې دلایل لیکي چې جهالت به یې له خبرو د ورایه معلومیږي، هلکه کمبخته! اشغال هم ډول ډول وي، خو اوسنی اشغال په مطلق ډول په ټولو برخو کې عملي او تطبیق شوی دی، د روس او امریکا د اشغال ترمنځ جزي توپیرونه د دې معنی نلري چې گني دوی اشغالگر نه دي، تاسو ته هم پکار ده چې هسې ځانونه ستړي نه کړئ:

۱ -ځمکه او فضا مواشغال ده.

۲ -عملاً اشغالګر قوتونه موجود دي.

۳ -د وی لخوا نظامي عملیات د معمول خبره ده.

۴ -دیني عالمان، دیني مرکزونه او نور دیني بنستونه د خطرناکو بریدونو سره مخ او په قصدي ډول هدف ګرځول کیږي.

۵ -د دې لپاره که امریکا مستقیماً زموږ په دیني احکامو بندیزونه لګوي نو ویریږي چې هسې نه پته څېره يې را ځرګنده او ملت يې پرضد را پورته شي،د دې ستونزې د حل لپاره يې په رسنیو کې پر دیني شعایرو د ملنډو او تمسخر لپاره سلګونه بلکې زرګونه کسان ګومارلي، تر څو د خلکو پر وړاندې دیني احکام بې ارزښته او تاریخ تیري وښايي او په بدل کې يې ورته د ساز سرود او لوبو څلورویشت ساعته نشرات پیل کړي، تر څو خلک له دین څخه رامنع او په عبثیاتو یې روږدي کړي.

۶ -د حکومت واګې يې داسې مفسدو عناصرو ته سپارلي چې د دوی روزل شوي جاسوسان، چالاکه مداريان، کاذبين، منافقين او د اسلام سر سخت دښمنان دي، د انتخاباتو جعلي ډرامې يې هم د خلکو د تیر ایستلو لپاره پر لاره اچولي.

۷ -د هېواد قانون د واشنګټن نه را وارد شوی او که یوه نیمه ماده يې په کې اسلامي لیکلي وي، هغه هم تش د کاغذ پر مخ ده او په عمل کې ټولې هغه مادې پلي کیږي چې د دوی د ګټو سره سمون خوري.

۸ -بمبارۍ، چاپې، شخصي زندانونه او د کفري لښکرو لخوا په ټولو چارو کې عملاً مداخله او ورته نور حالتونه او فعالیتونه موجود دي.

۹ -بهرني شرکتونه، این او ګانې، سازمانونه، استخباراتي ادارې، مافیايي باندونه او سفارتونه په یو مخ او په چټکۍ سره زموږ د دین او هېواد پرضد فعالیتونه کوي، د هېواد شتمني لوټ کوي، قومي، سمتي او ژبنيزو تعصبونو ته لمن وهي.

۱۰ -امریکا په وار وار ویلي چې دا یوه صلیبي جګړه ده، نه نو چې دا صلیبي جګړه ده، طبعاً زموږ د هېواد د دايمي اشغال، دلته د نصرانیت د ترویج او اسلام د خاتمې پلانونه تر کار لاندې دي، تر دوی پخوا روسانو په خپلو مستعمرو کې دا ډول کړنې او فعالیتونه ترسره کول چې د دوی لپاره يې پرته له افغانستانه په نورو ټولو مستعمرو کې مثبتې پایلې در لودی.

۱۱ -امریکا د چین او روس د کنټرول لپاره زموږ له هېواده د یو نظامي او استخباراتي مرکز په حیث کار اخلي، همدا راز د ځینو نورو هېوادونو استخباراتي کړۍ هم یو د بل سره په رقابت د امریکا په خوښه دلته فعالیتونه کوي.

۱۲ -د ارګ حکومت، حکومتي طرز، قانون، استخبارات، پولیس او عسکر د امریکایانو په پیسو چلیږي او مستقیماً د امریکايي عسکرو تر قوماندې لاندې دي.

۱۳ -امریکایان د افغان خاورې پرسر د ګاونډیو هېوادونو سره سودا کوي، له هر ډول قانون څخه مستثنی دي، د هېواد ټولې تولیدي سرچینې لکه مؤسسې، ګمرکات، د مخابراتي شبکو کنټرول، د نورو هېوادونو سره د اړیکو د جوړولو واک او خوښه، داخلي پالیسي، مقررات، تعلیمي برخه، کلتور، قضا او...یې په خپل لاس کې اخیستي.

۱۴ -د هېواد په بېلابېلو سیمو کې یې نظامي او استخباراتي مرکزونه فعال او خپله خوښه یې ده چې کله او چېرته اړتیا ووینې په خپله خوښه او بې له کوم قانون یا قانوني اجازته چاپه اچوي، بمبار کوي او زموږ خلک نیسي- له بمبارد نه، خو یې داخلي عسکر او پولیس هم په امن نه دي، لنډه دا چې د نظامي، اقتصادي، فکري او عقیدوي یرغلونو په کولو سره یې زموږ د هېواد او خلکو برخلیک په خپل لاس کې اخیستې، پر افغانستان د برید او اوس دغلته ته د دایمي پاتې کېدا لپاره یې له ملګرو ملتونو نانځکه جوړه کړې او په خپله خوښه یې لوبوي، نو ځکه خو د هېواد په هکله د یرغلګرو د موجودیت او فعالیت د جواز دلایل زموږ ملت ته هسې په سترګو کې خاورې اچول دي ...

۱۵ -اخر دا چې اوسنی اشغال تر پخوانیو هغو ډېر خطرناک او پایلې به یې هم خطرناکې او سنګیني وي، دا چې لویی رسنیزي دستګاوی د دوی په لاسو کې دي هڅه به وکړي چې تر ډېره وخته افغانانو ته دوکه ورکړي او امریکایي پوځیان ورته د سوله ساتو په نوم ور وپېژني مګر ولس ته اوس حقیقت څرګند شوی دی، خو سره د دې ټولو حقایقو چې بیا هم څوک وایي چې دوی اشغالګر نه دي، نو هغه به مرکب جاهل وي بل څه نه.

د نړیوال کفري بلاک د بشپړ شکست په هیله

## اسلام داسې نه دی!

#طنطاوی

دا په (قدر) باندې د ایمان لرلو نتیجه ده. خو دا په دې معنی نه ده چې په کور کې اوږد وغځیږې او انتظار وکړې چې روزي دې د کوټې له چت نه در ته اسلام داسې لکه خلک یې چې ګڼي نه دی. اسلام د تنبلۍ، په یوځای کې د کښیناستلو او غم کولو وړاندیز نه کوي. ښایي د هغه سړي کیسه مو اوریدلې وي چې خپل اوښ د جومات مخکې خوشي کوي او خپله جومات ته ننوزي، کله چې له لمانځه وروسته له جومات نه راوځي او خپل اوښ نه ګوري، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وایي: یا رسول الله زما اوښ! هغه مې خوشې کړ او په الله مې توکل وکړ او ورک شو.

رسول الله ورته فرمایي: د خپل اوښ پښې وتړه او بیا په الله توکل وکړه! راولویږي. ځکه چې له آسمانه سره او سپین نه راوریږي بلکې کوښښ باید وکړې او د دنیا له پاره داسې کار وکړې لکه تل چې پکې ژوند کوې. پیسې او مالي امکانات باید له حلالو لارو څخه په لاس راوړې او د دې د لاس ته راوړلو له پاره باید ټوله ځمکه ګز او ګام کړې څو د روزۍ د لاس ته راوړلو اسباب تر لاسه کړې او په دې لاره کې له هیڅ کوښښ نه ډډه ونه کړې.

که سره له دې هڅو هم څه دې چې غوښتل په لاس دې را نه وړل نو نهیلي او مایوسې دې باید ځان وژنې ته را نه کاږي او د غم له کبله باید ناروغ نه شې. باید راضي او سر لوړی واوسې او ووایې: هر څومره چې مې وس وو، هومره کوښښ او تلاش مې وکړ، په دې لاره کې کیدای شي بریالیتوب زما په نصیب کې نه وي، ای الله ستا په قضا او قدر باندې زه خوښ یم. په حقیقت کې ایمان همدې ته وایي.
اسلام داسې لکه خلک یې چې ګڼي نه دی. اسلام د تنبلۍ، په یوځای کې د کښیناستلو او غم کولو وړاندیز نه کوي. ښایي د هغه سړي کیسه مو اوریدلې وي چې خپل اوښ د جومات مخکې خوشي کوي او خپله جومات ته ننوزي، کله چې له لمانځه وروسته له جومات نه راوځي او خپل اوښ نه ګوري، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وایي: یا رسول الله زما اوښ! هغه مې خوشې کړ او په الله مې توکل وکړ او ورک شو. رسول الله ورته فرمایي: د خپل اوښ پښې وتړه او بیا په الله توکل وکړه!



# له هوا څخه د دروغواجنو پاڼو شیندل

## د اشغالګرو ضعف او شکست په ګوته کوي!!

#خبیر

له کومي ورځي راهیسي چې دټرامپ سولیدلي اوناکاره جنګي ستراتیژي اعلان شوي ذلیلو اوشکست خورده و امریکایانو دوکرغېړنو جنایتونوته زورورکړي اوپه زیاتې سپین سترګی یې ارتکاب کوي.

یو د ولسي خلکوبمباردول اوهغوئ ته مرګ ژوبله اړول اوبل له هواڅخه ددرواغجنو او شیطاني پاڼو شیندل.

امریکایانو دهلمند، ننګرهار، کندهار، وردګو ، لوګر اونورو ولایتونو کې په قصدي ډول سوونه عام وګړي چې اکثریت یې ښځي اوماشومان وو لدې امله قتل عام اوشهیدان کړل ترڅو افغانان وویروي چې دټرامپ ستراتیژي څومره خونړۍ اووحشتناکه ده .

دغه راز یې دپروان اوکاپیساپه ولایتونوکې دالوتکوپه زریعه دتوحید دمقدسي کلمي په اړه له استهزا او توهین څخه ډکي ورقي وشیندلي ترڅو عامه ذهنیت ځانته معلوم کړي چې افغانان دخپلومقدساتو سپکاوی څومره برداشت کولای شي او د حساسیت کچه یې څومره ده.

ددې ترڅنګ امریکایانو دهیواد په ځینوبرخو کې داسې پاڼي هم له الوتکو غورځولي چې ګواکي داسلامي امارت مشران له ګاونډي هیواد څخه وتلوته اړشوي اوکوم بل هیوادته یې دتګ تصمیم نیولی .

خولکه څنګه چې دافغانستان په باب دټرامپ وینا له سره ترپایه سربداله اوزبون زده وه او له سرتمبګی ،نمایش اودوکي پرته یې بل پیغام نه درلود دغه ډول یې عمل اوکردارهم له تزلزل، شکست او ماتوګوډو څخه ډک دی.

له ټرامپ وړاندې ۱٦ کاله امریکایانو ددې لپاره چې افغانان په زور تابع اوخپله خبره پرې ومني بې باون قاتلي الوتکي یې پرې سترې کړي، نیمه اتومي بمونه اوزهریله وسلې یې پرې وکارولي ،دوه لکه افغانان یې له تیغه تیرکړل، دوه میلونه تنه یې شکنجه کړل، خو امریکایان دې ووایې چې دافغانستان کومه سیمه اوبرخه یې له مقاومت اواشغال ضد حساسیت څخه خالي اوافغانان یې دجهاد اوقرباني له داعیی څخه واړول.

افغانانو ته دامریکایانو دښمني له لمر ظاهره ده اوپه دې خبره یې سرخلاص ده چې دغه دطاغوت بچیان ددوئ خاوري ته ددې لپاره راغلي چې داسلامي شعائرو اوارزښتونو بیخکني وکړي نودافغانانو په ذهن کې دامریکایانو علاج داندی چې په خلاف یې مظاهري راوباسي اودزړه درد په څوشعارونو تسکین کړي بلکې علاج یې دابولي چې داسلام اوافغانانو دغوابدي دښمنانوته په تیره اونیغه توره ځواب ووئیلی شي.

امریکایانو ته داخبره هم وریادول غواړو چې داسلامي امارت مشران اوس په هغه حالت اوشرایطو کې قرارنلري چې دټرامپ په ستراتیژي به نورو هیوادونو ته دتلوتصمیم نیسي اوس د افغانستان تر ۵۰ فیصده زیاته ځمکه داسلامي امارت ترولکي اوسلطي لاندي ده ددې خبري هیڅ ضرورت نه پیدا کیږي او نه هم منطقي استدلال دی چې د هیواد دغه لویه اراضي دې پریږدي او نورو هیوادونو ته دې ولاړشي.

فکر کوو ددغو شیطاني اوکاذبو پاڼوله شیندلو څخه ښکاري چې امریکایان دضعف او ناتواني په ورستي پوړۍ دریدلي په عملي میدان کې یې ټول ابتکارات اوچانسونه ناکاره ګرځیدلي نواړدي چې له هواڅخه بې بنسټه اوبې ربطه افواهات خواره کړي اودیوڅو ورځولپاره پرې اذهان اخلال کړي.

# زموږ مشاهیر

## دهیوادنومیالی عالم شیخ الحدیث

## مولانا عبد القدوس جان رحمه الله



**لیکوال: مفتی محمدگل سعید**

په دې کې شک نشته چې د وفات شویو انسانانو تذکره او د ژوند حالات بیانول د هغوی یاد را ژوندی کوي، یاد یې لا څه، داسې ده لکه هغوی چې پخپله بېرته را ژوندي کیږي .ویل کیږي:مات مَیّتٌ والذِّکر یُحِییه . ژباړه: انسان مړ شو خو یاد یې بېرته دی را ژوندی کوي.

داسلامي نړۍ لوی مؤرخ امام شمس الدین محمد بن عبد الرحمن السخاوي (متوفی ۹۰۲ هـ) پخپل کتاب (الإعلان بالتوبیخ لمن ذم التاریخ) کې د ابو العباس احمد بن علي بن ابي بکر المیُورقي قول را نقل کړی چې وایي: مَن وَرَّخ مؤمناً فکأنَّما اَحْیاه،ومَن قَرأَ تاریخَه فکأنَّما زَارَه. ژباړه:چاچې د مؤمن تاریخ بیان یا ولیکه داسې ده لکه هغه یې را ژوندی کړ، او چاچې د مؤمن تاریخ ولوست داسې ده لکه د هغه سره یې ملاقات وکړ.

زموږگران هېوادافغانستان لله الحمد تر بل هرهېواد، اولس او ټولنې زیات د مېړونو درلودو ویاړ لري، ددې هیواد نومیالي د تاریخ په گواهۍ د ژوند د هر ډگر (علمي ،جهادي ،سیاسي، هنري ، او ...) اتلان پېژندل شوي دي، دې هېواد هر وخت په خپله غیږ کې په زرهاوو ویښ عالمان، پوهان، عارفان، ادیبان، باتور غازیان او فاتحین رالوی کړي دي.

مونږ پرخپله خاوره ډیرې داسې علمي څېرې لروچې نه یواځې یې علمي شهرت پخپله خاوره کې لاره بلکې دخپل هیوادپه پرتله یې پوهه، ځیرکتیا، هڅې ،خوارۍ ،علمي څیړنې دنوروځایونوخلکوښې پیژندلي اوپه خپلوتاریخونواوتـذکروکې یې دهغویادترخپله وسه ژوندی ساتلی،خو په دې څه باندې درو لسیزو کې چې د افغان اتل اولس برخلیک د خپل ټاټوبي او خپلو امکاناتو او وزلو پرځای اوس له کوره بهر په نورو نورو لاملونو ټاکل کېږي او بېکورۍ، جلاوطنۍ ، وژنې ، ترنې، شړنې، اوسپکونې زموږ د پتمن اولس برخلیک گرځېدلی دی، دخپلواسلافویاد یې ترینه هیرکړی دی اوافغان ولس په دغسې بیړني اوڅپڅپاندبهیرکې چې له یوه دښمن نه یې لادارام ساه نه وه اخیستې چې له بل لوی استعمارسره مخ شوځرنگه به وکولای شي چې د خپلو اسلافو او رجالوپه هکله مستندمعلومات راټول کړي ، په داسې حال کې چې دملي مشرۍ او مخورتوب مدعیان مو دخپلو لېونیو هوسونو په سیند کې ډوب په اولس پلورنه لگیا دي،



خوبیاهم لله الحمد چې افغان ولس په پوره میړانه اواتلولۍ په روان جهادي بهیرکې هم ترخپله وسه کوښښ کوي چې دتورې ترڅنګ قلم له لاسه ونه غورځوي اودخپلواسلافوژوندلیکونه ولیکي ترڅوچې دهغوی ارواوې خوشاله شي اوځوان کهول ترینه درس واخلي.زمونږ دګران هیواد دنومیالیو عالمانو اومشاهیروله ډلې نه یوهم شیخ الحدیث مولیناعبدالقدوس جان نورالله مرقده دی ،چې په پوهه اوعلمي رسوخ باندې یې ټول افغانان اعتراف کوي،په دې لاندې څوکرښوکې مودهمدې سترې علمي څېرې په هکله یولړمعلومات راغونډکړي دي،خدای دې دده روح پرې خوشاله کړي .

## زوکړه اوزده کړه :

شیخ الحدیث عبد القدوس جان رحمه الله د خپل وخت لوی صوفي او نومیالی عالم ؤ چې په (۱۳۵۱ه ق) کال مطابق ۱۳۰۹ش د افغانستان د کابل ولایت د موسهی ولسوالی د حاجې خیلو کلي په یوه عالمه او فاضله کورنی کې زیږ یدلی دی .پلاریې استادکل شیخ الحدیث مولوي محمد نبی جان اخندزاده نومیده چې د شیخ المشایخ ملا عبد الحنان زوی، د ملا احمد ګل لمسی په ختیه حسین خیل اودخپل وخت له مشاهیرو عالمانو څخه ګڼل کیده.

شیخ الحدیث مولاناعبدالقدوس جان اخونزاده ابتدائی دیني زده کړې په خپل کاله کې د خپل نیکه ملا عبد الحنان او بزرګوار پلار ملا محمد نبی جان (د سهاکو اخونزاده صاحب) څخه سرته ورسولې ،د لوړو تحصیلاتو لپاره یې د هیواد بیلا بیلو ولایتو نو ته سفر وکړ او د هیوادله مشهور وعالما نو لکه مولینا عبد المنان تګابي (دپنجشیرملاصاحب )، مولینا عبد الصبور، مولینا محمد جان(مشهورپه ګمران ملاصاحب) او نورومشهورو عالمانو څخه یې زده کړې وکړې او بیا په ۱۳۷۷ه ق کال د ۲٦ کالو په عمر د کابل ولایت د قلعه جواد په مدرسه کې چې دا یوه شعبه او شاخ د غزني د نور المدارس د مدرسې وه، لویه دوره وکړه،اود نامتوشیخ الحدیث مولینا سلطان جان رحمه الله په لاس ورته د اجازې سند ورکړل شو.

**تدریس :**شیخ الحدیث عبد القدوس جان چې کله د مروجه دیني علومو د زده کړې څخه فارغ شو نوپه تدریس یې شروع وکړه دوه کاله د مو سهی د معین خیلو په کلي کې، شپږ کاله په چهار اسیاب کې، څلور کاله په سفید سنګ کې، اته کاله دکابل په غو ثیه مدرسې کې، یو کال د لوګر ولایت د هونی د کلي یه مدرسه کې، دوه کاله د پا کستان د ضلع چارسدې جامعة ملیه میرزا ډهیر کې، اته کاله د پاکستان د ضلع هنګو په جامعة العلوم الاسلا میة زرګرې کې او غا لبًا دیارلس کاله د پېښور د ضلع نوښار جهاد کلي (چراټ) په جامعه اسلامیه محمد یه کې یې فنون او حدیث درس کړل،په زړه پورې تدریس یې کاوه اوله شمیره زیات شاګردان یې جامعې ته روزلي وړاندې کړل.دده شاګردان ډیرزیات دي چې هریو د خپل وخت لوی عالم او د دیني علومو مدرس دی .

تزکیه اوتصوف:شیخ الحدیث عبد القدوس جان رحمه الله د تزکیة النفس او د باطن د اصلاح لپاره د پاکستان د پیښور غرغشتو کلي ته راغی او د شیخ المشایخ حضرت مولینا نصیر

الـدين د غرغشـتو مولانـا صـاحب (نومـوړی د مولانـا بهـاء الـدين زوی د مولانا سعد الدين لمسی په ختيه کـاکړ د خپل وخت لوی عالم او استاذ کـل ؤو، چـې پـه ۱۲۹۵ هــ کـال د پښـور پـه غرغشـتو کـې زیږیـدلی دی ،او پـه افغانستان او پاکستان کې پـه زرگونـو شاگردان درلودل چې هر يو شاگرد يې د خپل وخت نامتو عالم تېر شـوی دی، همدارنگه يې په زرگونو مريدان تربيه کړی دي او د بـاطنی فيوضـاتو نـه يـې برخه ورکړې ده، پـه ۱۳۸۸هــ ق کـال د۹۳کالو پـه عمـر وفـات شـوی او پـه غورغشـتوکي يـې مزارمرجـع دخـاص اوعام دی.)،نه يې بيعت وکـړ بيـا چـې کله پـه ۱۳۸۸هــ ق کـال د غـر غشـتو مولينا صاحب د دار فناء نه دار بقاء تـه رحلت وکړ اوخپل مريدان ،خادمان او عقيـد تمنـدان يـې يتيمان کـړل نوپـه ۱۳۹۹هـ ق کال شـيخ الحـديث مولانـا عبد القدوس جان پاکستان تـه هجـرت وکـړ لـومړی د خپـل مرشـد حضـرت مولينـا غرغشـتوی صـاحب د قـبر د زيارت او د هغه د زامنو سره د ملاقـات لپاره غر غشتو ته ولاړ او هلته يـې لـه مولينا ابراهيم او مولينا فخر الدين سره چې د مولينا صـاحب رحمـه الله زامـن وو ملاقات وکړ او هغوی ته يـې خپـل حالات بيان کړل او ورته ويې ويل چې د مولينا صاحب څخه مې دوه سبقونه اخستی وو نـواوس تاسـې سره مشـوره کـوم چـې تاسـو څـه مشـوره راکـوی هغوی ورته وويل چې د مولينا صاحب اته ماذونان دي چې ځينې پکـې وفـات شوي او ځينې ژونـدي دي او پـه ټولـو کې کامل او مکمل قاری روښان بنـوي دی چې د بنو په ښار کې د هنجل گيټ سره نـژدې جومـات کـې امـام دی او د مولينا لـه خاصـو ماذونـانو څخـه دی، حضرت شيخ الحـديث عبـد القـدوس جان د خپل مرشد د زامنو مشوره قبوله کړه او د قاری صـاحب د ملاقـات او د بيعت تجديد لپاره بنو ته لاړ هلته يې د قاری روښان بنوی سره ملاقـات وکـړ د بيعت د تجديد نه وروسته په کم وخت کې د هغه لخوا ورته د خلافـت اجـازه ورکړی شـوه ،شـيخ الحـديث مولـوي عبـد القـدوس جـان نـورالله مرقـده د وعظ، تبليغ او تدريس ترڅنگ علمـي آثار هم پريښي دي . چې په لاندې ډول دي:

۱ -مناســک الحـج مـع فضـائله والادعية (چاپ)

۲ - په شافيه باندې حاشيه (چاپ)

۳ - په مسلم الثبوت باندې حاشـيه (چاپ)

٤ - پـه تفسـير بيضـاوی بانـدې حاشيه (چاپ)

٥ - الرسـائل السـديدة فی المسـائل العديدة (چاپ)

٦ - اللف العاليـة والنـشر الغاليـة (چاپ)

۷ - الفـوزالکبير بالتوسـل بـالنبی المنير (چاپ)

۸ - مجمـو عـة الرسـائل پـه اؤوه رسالو مشتمل کتاب (چاپ)

۹ - په سراجی حاشيه (ناچاپ)

۱۰ - پـه مشـکوة شريـف بانـدې حاشيه (ناچاپ)

د شـيخ الحـديث مولـوي عبـد القـدوس جـان رحمه الله عليه د مشـهورو ماذونانو او خليفه گانو نومونه دادي :

۱ - شـيخ الحديث مولـوي عبـد المالک د شيخ الحـديث مولـوي عبـد القدوس صاحب زوی او د هغـه ځـای ناستی.

۲ - حضرت خواجه مولينا عزيـز الرحمان د شيخ المشايخ خواجـه قـاري محمد روښان بنوی رحمة الله عليه زوی اولنـی کـس دی چـې د حضـرت شـيخ صاحب لخوا ماذون او خليفه گرځـول شوی دی .

۳ - حضرت خواجه مولوي گـل محمـــد د افغانســـتان د سرپـــل او سيدونکی .



٤ - حاجی عبد المیر د حاجی پاچا میر زوی د افغانستان د پنجشیر اوسید ونکی .

٥ - حضرت خواجه حافظ مولینا محمد نسیم د محمد سلیم زوی د بنو د غریب آباد اوسیدو نکی او نور .

جناب شیخ الحدیث مولوی عبدالقدوس جان صاحب نورالله مرقده دزیاتو کمالاتو ، کراماتو او مناقبو خاوندؤ -ده کمالات علمي اوعملي درلودل ،دعلم په کمال کامل،دعلم په جمال جمیل،دعبادت ،زهد، ذکر اوتقوا په صفتونوموصوف ؤ،شیخ صاحب دخپل وخت ممتاز،برجسته اوعمده عالم ،صاحب التقوی ،کامل الحیاء اوحمیده اخلاقوخاوندؤ،دحیاء اواخلاقو مجسمه وه،ښایسته اخلاق الله ورکړي ؤ، زیاته تواضع یی درلوده، اوټول عمریی داسلام ،شریعت اوعلم په خدمت کي تعلیماً ،تدریساً اوتصنیفاً صرف کړی ؤ،نوموړی دمقدس دین اعلی شخصیت اوحضرت امام اعظم نعمان بن ثابت رحمه الله دمهذب مذهب یوه لویه پایه اوستره تکیه وه،ده دقران عظیم الشان په تفسیراواحادیثوپرتدریس سربیره دباطني علم کسب،سلوک،ذکر،مراقبه ،دزړه تصفیه اودنفس تزکیه به یی کوله اوهم یی دخپلو مریدانو اومتعلقینو په باطني اصلاح کې کوښښ کاوه. پرهیزګاره عالم ؤ،جاه اوجلال ، شهرت اونوم یی نه خوښاوه ، تل به په ذکر،تلاوت ، مراقبه ،نوافلو، تصنیف، دسیرت، تفسیر اومحققینو عالمانو دکتابونو په مطالعه بوخت ؤ، او خپل ټول عمریی په همدې لاره کې تیرکړ.

په ۱۳۶۰ ل کال چې دداعیانو علماوو په نوم دجهادي ګوندونو دیوکولو هڅې پیل شوې، اودهیواد مخورعالمان سره راټول شول ، ترڅوچې اووه واړه تنظیمونه سره یوکړي اوخپل منځي اختلافات له منځه یوسي، شیخ صاحب له دغوعالمانوسره ملګری اوددغې دلې له مخکښانوڅخه ؤ،زیاتې هلې ځلې یی وکړې ترڅوچې جهادي ګوندونه یوکړي خومتاسفانه چې جهادي رهبران سره یونشول اوخپل منځي جګړې تودې شوې.

**وفات :**حضرت شیخ الحدیث مولوي عبد القدوس جان نورالله مرقده د۱٤۲۰ هـ ق کال د صفرالمظفر د میاشتې په (۱۲) مه د پنجشنبې په ورځ د مازدیګر د لمانځه په وخت کې وفات شو او د جمعې په ورځ په (۲) بجو د پیښور د چراټ په جهاد کلي کې دجامع جومات په خوا کې یې د جنازې لمونځ ادا کړی شو لمونځ د ده د وصیت مطابق دده مشر زوی او ځای ناستي شیخ الح دیث مولوي عبد المالک ادا کړ د حرکت امیر ارواښادمولوي محمد نبی محمدی نورالله مرقده او نورو لویو مشایخو د حضرت شیخ صاحب پګړی د شیخ الحدیث مولوي عبد المالک په سر ورکیښوده او هغه یې د حضرت شیخ صاحب ځای ناستی وګرځاوه ،بیا یې جنازه خپل وطن ته یو وړل شوه او د کابل ولایت په مو سهی کې پخپله پلرنۍ هدیره کې په ډیره درناوی خاورو ته وسپارل شوه.روح دې ښاداویاددې تازه وي.

# استقلال تجليلول دهغو مجاهدوافغانانو حق دی چې اوس هم له انګریزانو او یرغلګرو سره په مبارزه بوخت دي ؟

خليل - عزيز

دامريکايانو او انګريزانو په متو اورحم کـرم بانـدي ولاړ دکابـل ګـوډاګي رژيـم دهيواددااسـتقلال ۹۸ کليـزه پـه داسـې شرايطوکې ونمانځله چې پـه هيـوادکې پـه زرګونـه امريکـايي اوخـارجي اشغالګرعسکر موجـود وو ،قـاتلې چورلکـواوبم غورځونکـو الوتکو يې دافغانستان په اسمان اوفضـا لـه بلې هرې ورځې زيات پروازونه کول.

داسـتقلال ورځ پـه داسـې حـالاتوکې ونماځـل شـوه چـې دافغانسـتان پـه اړه دسپيني ماڼۍ واکمنو او د پنټاګون جنرالانو ګډه غونډه درلوده چې دافغانستان د مزيـد اشغال لپاره خپله راتلونکي ستراتيژۍ څنګـه عياره اوپه څه ډول اعلان کړي.

داسـتقلال ورځ دامريکـادتورې مافيـا (بلـک واټـر) د بدماشـانو پـه دې کـش اوګيرکـې تيره شوه اوګوډاګيـانو ونمانځله چـې بلک واټـر لـه ټرامـپ څخـه پـه کلـه غوښـتنه کوله چـې د افغانستان د جګـړې اوقتـل عـام واګـی او اختيـار نـور مخـامخ نوموړې شبکې تـه وسپاري او ددوئ قاتل جـال چمتـو دی چـې دکـال پـه ۴۵ مليارده ډالرو کرايي سره دافغانانو قتل عام اوټکولو ته دوام ورکړي.

اوداستقلال ورځ په داسې ماحول کې ونمانځل شوه چې دکابل په اصطلاح واکمنو اعلان وکړچې که امريکا دافغانستان لپاره هر ډول ستراتيژي ټاکي هغه دځان په خير او صلاح بولي اوکلک حمايت يې کوي

مـونږ دزمـري ۲۸ نيټـه دهيـواد داستقلال تاريخي ارزښت اوله افتخار ډکه ورځ بولـو؛ خوددغـه افتخـار اوويـاړ اظهـار اونمانځنه بائيدهغه څوک وکړي چې په غاړه کـې يـې دانګريزانواودهغـوئ دبچـوړو امريکايـانودغلامی طوق اوغړونـدي نـه وي پراته!!

دابه څنګه داستقلال نمانځل وي چې په مراسموکې يې دانګريزانوپـه خلاف يوه ستوغه خبره اوداتلولی شعار نشي- وئيل کيدای ؟

دابـه څـه ډول داسـتقلال نمانځـل وي چې الله پاک تـه دشکرونواوعذرونوپه ځای بين المللي رقاصي اورقاصان په کابل اونورو ښارونو درقص او ګډادکانسرتونو په جوړولو سره دافغان ولس ددیني اوملي غرور جنازه باسي ؟

لـه شرک پرتـه داسـتقلال تجليلـول دهغـو افغانـانوحق دی چـې داسـتقلال پـه اصـلي روح اومفهـوم پـوهيږي ، دخپلواکی ګټلومینه اوجذبه ولري

استقلال تجليلول دهغو افغانانو حـق جـوړيږي چـې اوس هـم لـه انګريزانـو سره دزړه لـه تلـه کرکـه اونفـرت لـري اوداهـوډ اوعـزم يـې پـه رګونو کې چليزي چې دخپلو مجاهدو اسلافو په نقش قدم بـه ځي اودخپل هيواد له حريم او حرمت څخه بـه دسر په بيه دفاع اوساتنه کوي.

اواستقلال تجليلول خودهغو افغانانو سره زيب کـوي چـې اوس هـم دخپلـې خـاوري اوملي نواميسوددفاع اوسـاتنې پـه خاطر دامريکا او انګريزاشغالګرپوځيان پـه ټنډه ټنډه ولي اودخپلونيکونويادتازه کوي.

لـه دغـه هـوډ اوارادي پرتـه کـه څـوک داستقلال دعوه لري اودتجليـل حق ځانتـه ورکـړي ، دابه دزمري ۲۸ه ورځې دغازيانو، مجاهدينواوفاتحينوله روح اوتاريخ سره جفا اوستره غداري وي.

لـه متعال رب (جل جلالـه) څخـه تمنا اوارزولرو په څه ډول يې چې دانګريزانو پـه مقابل کـې زمونږ دنيکونواوننګيـاليو اسلافو معاونـت اومـدد کـړی وو، همداسـې يـاالله داوسنيوانګريزانواوامريکايانوپه وړاندې هـم دافغانانوملتيې نورې غښتلي اوپياوړې کـړې ، مبينـه فتحـه ورکـړې اونـور دافغانسـتان پاکـه خـاوره لـه يرغلګـرو اوديرغلګـرو لـه ګوډاګيانوڅخـه دتـل لپـاره پـه امـان کې راولي .

امين




# حقاني صاحب د شجاعت، وفا او تقوا دنګ منار

م عزيزي

باور وکړي چې په هيڅ ډول اومناسبت ځانته ددې خبرې حق نشم ورکولای چې دجهاد، شجاعت ، وفااوتقوا دلوی امام دعربو او عجم دسترګو تور حضرت مولاناجلال الدين حقاني (مدظله العالي) په حق کې څه کرښې وکاږم او دهغه په مبارزي، خدمتونو او پاکي ماضي باندي تبصره ولرم .

دحقاني صاحب د۴۰ کلنې جهادي مبارزي ټکي په ټکي دافغان مجاهدولس په وړاندې خپوررون کتاب اوزريني کرښې دي

داخبره لکه لمر ښکاره اوروښانه ده چې دسره ښکيلاک اومختورنو کمونيستانوپه مقابل کې حقاني صاحب هغه څوک وو چې دهيوادپه جنوب کې دنورو څوتنو ملګروترڅنګ دافغانانو دبرحق جهاداوپاځون اعلان وکړ.

حقاني صاحب هغه څوک وو چې دروسانواو کمونيستانوپه وړاندې يې دچريکي جګړي ترڅنګ دجبهه يي اوتهاجمي حملواساس کيښوداوله دښمن سره دهيواد دجنوبي ولايتونوپه څواستقامتونو کې ړومبی دفاعي کرښي واچولي.

حقاني صاحب هغه څوک وو چې تررهبري لاندي يې دټول افغانستان په زرهاوو تنه بلاتفريقه اوپرته له کوم امتيازه دهرولايت مجاهدين راټول اومنسجم وو

حقاني صاحب هغه څوک وو چې په سختوحساسوشرايطوکې يې دجهادي امورودتنظيم اوسرعت لپاره دحکومتي سيستم په شکل په پوځي ، تعليمي ، صحي اود مجاهدينو اومهاجرينو دستونزو او مشکلاتودله منځه وړلوپه برخوکي کماحقه تشکيلات اولازمي اسانتياوي لرلي .

حقاني صاحب هغه څوک وو چې ددديني علومودترويج اوتدريس ترڅنګ يې دعصري علومودزدکړو ګڼ مجهز علمي مراکز تاسيس کړي وو اودهيوادپه لس هاوو زرو بچيانوپه کې زدکړي حاصلولې .

حقاني صاحب هغه څوک وو چې په ړومبي ځل يې له روسانو اوکمونيستانو څخه دخوست هغه ستراتيژيک ولايت چې له هرپلوه دښمن ترکلکو حصارونولاندي ساتلي ووددفاع لپاره يې څوکمربنده په مائينونوپوښلی وو اولسګو نوزرو عسکروترينه ساتنه اوځارنه کوله خوبياهم دالله تعالی په نصرت دمجاهد حقاني صاحب ترمدبرانه رهبري لاندي فتح شواودخوست دفاتح لقب يې خپل کړ

حقاني صاحب هغه څوک ووچې ترپايه يې دجهادلوړدريځ اوپه عدم معامله استوار موقف

وساته نه دګاونډیوهیوادونوکوم فشارته یې تېټه وویلي نه یې دامریکااوملګروملتونودسیسواوحربو وته یې کمزوري خبره وکړه ترپایه یې موقف داوو چې روسانو بائیدبلاقیدوشرطه له افغانستان څخه ووځي ،کمونیستي رژیم بائیدسقوط وکړي اوځای یې بائیدیوه سوچه اسلامي نظام ونیسي .

حقاني صاحب هغه څوک وو چې دخپل منځي جګړو اورقابتونو څخه یې په ټوله معنا ځان پاک اوستره وساته ، رباني ، حکمتیار ، سیاف ، مزاري اونورو ډلوته به یې په صراحت وئیل چې یوله بل سره موجګړي باطلي اوهیڅ یولوری هم په حقه اوسمه ندی .

حقاني صاحب هغه څوک وو چې دکمونیستي رژیم له سقوط اودمجاهدینوله بري ورسته یې دقدرت اونوروامتیازاتوپرځای ددې هڅه کوله ترڅوښکیل تنظیمونه سره روغه وکړي اودیوه سوچه اسلامي نظام دحاکمیت لپاره سره متفق شي په دې برخه کې یې دهرجګړه مار تنظیم مشرته ځولی وغوړوله چې دالله لپاره د۱۴ کلن مقدس جهادارمانونه مه ضائیع کوی .

حقاني صاحب هغه څوک وو چې کله دملامحمدعمر مجاهدنورالله مرقده په مشرۍ دطالبانوداسلامي تحریک وړانګې په افغانستان خپري شوي اولښکري یې دلویې پکتیا حدودو ته راورسیدي کله یې چې دهغوئ اهداف مطالعه اوله مسؤلینوسره یې وکتل اوډاډه شوچې نوموړی تحریک او پاڅون دولس اوهیوادپه خیردی اوارادې یې پاکي دي نودلویې پکتیاټول قومونه اومشران یې په یوغږ دیته راوبلل چې دطالبانوحرکت ملاتړ وکړي اواجازه ورکړي چې داسلام دغه ریښتیني سپاهیان دلویې پکتیاپه سمو اوارو، غرونواورغونوکې دالهي نظام دتطبیق په خاطرخواره اوواګی په لاس کې واخلي

حقاني صاحب هغه څوک وو چې کله طالبانوورڅخه وغوښتل چې دکابل دنیولولپاره دجنګ سړي ورکړي اودطالبانوړومبی کرښه په چهاراسیاب ولسوالی کې وه ، نودلویې پکتیا، پکتیکااوخوست په پرګنوبې دیوه ملي مشرپه حیث چې غږوکړدشلوزروتنوپه شاوخواکې یې ځوانان اماده اودلوګر په ولایت کې یې دلویې پکتیادبیلابیلوقومي مشرانودیوې پراخې ۱۰۰۰ کسیزې جرګې په ترڅ کې دطالبانودهغه مهال نوموتي مشرمولوي احسان الله احسان څخه وغوښتل چې که تاسې اجازه وکړي کابل مونږ درته نیسو.

حقاني صاحب هغه څوک وو چې کله په هیوادامریکایی طاغوت اومتحدینوېې په افغانستان یرغل ته ملاوتړله نویوځل بیایې میدان ته راودانګل اواعلان یې وکړ چې له امریکایانواودهغوئ له غلامانوسره به داسې وجنګیږي لکه له روسانواوکمونیستانوسره چې جنګیدلی وو

حقاني صاحب هغه څوک وو چې رسااوتاریخ جوړونکي غږاوټکو یې دبې بې سي دخبریال ددې پوښتنې په ځواب کې چې دافغانستان قومونه ، تنظیمونه اونورې پرګنې غواړي چې یوپراخ بنسټه حکومت دلویې جرګې له لاري رامنځته شي ، حقاني صاحب ورته ووئیل چې ستاداټکل ناسم ده ، زه په جهادي مشرانوکې جهادي مشر، دقومونوپه مشرانوکې قومي

مخور، دعلماوو په منځ کې عالم اودپرگنوپه منځ کې دپرگنوسرخیل اودافغانستان داسلامي امارت په چوکاټ کې دسرحدونو اوقبائیلو مشر اووزیریم پرته له یوځو غلامانو نور ټول اقشاراوپرگني دامریکایي یرغل ضددي اولکه دروسانودیرغل په څیربه ورسره مقابلې ته چمتودي.

حقاني صاحب هغه څوک وو چې کله کابل اسلامي امارت تخلیه کړاوپه خاص ډول خارجي مجاهدین چې کورنی یې دلته میشتي وي ، دپناه اونجات دیوه لوی غر په څیرورته ودرید اوسینه یې ورته سپرکړه اوزیاتره کورنی یې په مصؤن شکل خوندي سیموته ورسولي اودوفاداری هغه ریښتینی عهدیې ورسره وپاله .

حقاني صاحب هغه څوک وو چې دامریکااوناټودیرغل په خلاف یې داسلامي امارت ترسیوری لاندې خپله دجهاددتنظیم لپاره ملاوتړله اوترهغوپوري یې خپله دجهادرهبري کوله چې په وس اوتوان یې پوره وه ، کله چې پوه شوچې وجودورسره نوره یاري نکوي اودعمرپه لحاظ کمزوری شو نوخپلوباشهامته مجاهدو ځلمیو بچیانو ته یې مخ واړاوه چې هلی رامخکې شي اوتروریستی سلگی پوري دکفر او گمراهی په وړاندې دجهاد سنگرونه تاوده اوگرم وساتي ، هماغه وو چې خلیفه سراج الدین حقاني ، ډاکټر نصیر الدین حقاني، حافظ بدرالدین حقاني، حافظ انس حقاني ، حافظ عزیزحقاني چې دځوانی تاندمنگ ته رسیدلي وو هغوئ دخپل فاتح اوقائد والد تشه ډکه کړه اودجهاد میدان ته یې په قائدانه ډول راودانگل او لکه څنگه چې دمشر حقاني صاحب توقع وه، له هغو څخه زیات الله پاک دده په زمریالیو حقانیانو کې له صلیبي طاغوت سره د مقابلې توانایی او دمشري صلاحیتونه پیدا او ولورول.

حقاني صاحب هغه څوک وو چې خپلواتلوځامنوته یې ده تلپاتي وصیت په ډول ورته وئیلي و چې نړیوال طاغوت اوزهرجنه میډیابه ډول ډول پروپاگندونه اوتبلیغات وشیندي ترڅوخدای مکړه ستاسوپه زړونوکې غرور وټوکوي اوداسلامي امارت له واحد او نجات بښونکي صف څخه به موفاصلي اوجدایي ته راوبولي ، پام چې دغوفتنو اوحربو ته تروریستی سلگی پوري متوجه ووسي ، ترهغوموچې داسلامي امارت په قیادت کې الله مکړه صریحه شرعي خلاف ورزي نه وي لیدلي له اطاعت او فرمانبرداری څخه یې مخ وانه وړي .

اوحقاني صاحب هغه څوک وو ، چې کله دامریکایي طاغوت اومنافقینوپه وړاندې دزړه ټوټې اوزمریالي بچیان شهیدان شول ، لکه ډاکټرنصیرالدین حقاني ، حافظ بدرالدین حقاني اوطالب العلم عمر حقاني ، نوددې په عوض چې خلک هغه ته تسلیت ووایي دجهاد اوشجاعت دغه سترغر به دهغوئ دشهادت دخبرپه اوریدو افغان ولس اومجاهدینوته دپیغامونو په صادرولودتسلیت اوډاډگیرني مراتب وړاندې کول چې زما دځامنوپه شهادتونو موجهادي مورال چیرته پیکه اوکمزوری نشي ، ماله متعال رب ج څخه همداسې غوښتي وو چې کله دځوان اوبیاځوانی تاندي مرحلي ته رسیږي نوکه ضرورت وو خپلې قیمتي ککري به دالله درضالپاره قربانوي .

## خاطرې اوحکایتونه :

دروسـانوپه خـلاف دجهـاد ړومبي کلونـه وو دقیـق تـاریخ رانـه هیـردی ، زمـونږ کورونـه دهجـرت دیار کهي دمهاجروپه کمپ کې وو لـه نومـوړي کمـپ سره ترځنـګ دخساري بل کمپ وو زه به نیږدي ۱۲ کلـن وم مسلسـلې تبـې راتـه لګیـدلي وي ، تـره مـې دخسـارې کمپ دمهاجروکلینیک ته راوستی وم ، ډاکټرولیـدم یوڅوګولی رایـې کړي ، په دې وخت کې دخساري بازارسره نیږدي لویه جلسه جوړه وه خلکووئیل چې مولوي جـلال الـدین حقـاني ورتـه راغلـی اووینـاکوي ، جلسې ته چې ورغلورښتیاهم حقاني صاحب ویناکوله خلک یـې جهادتـه رابلل کله چې جلسه خلاصه شوه تره مي له لاسه کلک ونیـولم اودحقـاني صـاحب پـه خـوايي وروسـتلم دخلکولـوی هجـوم پـرې جـوړوو ، خومونږ هم وروررسیدلوتره مې لـه سترې مشي ورسته ورته ووئیل چې مولوي صاحب داهلک طالب العلم ده مریض ده په سر یې لاس راکـش کړه ، مشفق حقاني صاحب لاس زما په سرراکش کړاوترینه راروان شولو ، مامې تره ته ووئیل چې داڅوک وو

هغــــه راتــــه ووئیـــــل چـــې دادمجاهدینومشــــهور قومنـــدان مولوي جلال الـدین حقـاني ده اوس بـه دې مریضې ټولـه ورکـه شي ؛ باوروکړی پـه هماغـه ځـای راڅخـه تبه اودوجودضعف والوت اودالله په مرحمت اودحقـاني صـاحب پـه دم اولاس کش کولو رک روغ وګرځیدم

داسلامي امارت له سقوط دوه کالـه وړانـدې داسلامي امـارت لـه لوري حج ته ولیږل شـوم ، یـوه ورځ مې مازدیګرمهال طواف کاوه سخت هجوم وو لـه حجراسود څخـه چـې تیرشوم ،هغـه دچاخبره څـه ګـورم چې نه ګورم ، حقاني صاحب مبارک له ماڅوقدمه مخکې لـه تـورې زړه راښکوني پکتیاواله لونګی سره راوان دی پـه لاس کـې یـې ددعاګـانوکوم کتـاب دی اوهغـه لـولي ، خـوچې دخلکوهجوم پـرې راشي نوژرکتـاب پټ کړي اودځان ټینګولوپه لټه کې شي ، ماځان ورنیـږدي کړاوترشـاېې روان شوم اودواړه لاسونه مـې پـراخ ونیـول اولکـه سـپرورڅخه تاویـدم اوترخپلې وسې به یې کوشش کـاوه چـې هجـوم پـرې زیـات ورنشيـ ، دحقاني صاحب په اخیرکې راباندي پام شوراوي کتل اومسکی شوماچې

تورپـاچ پټکـی ترلـی وو نوراتـه وي وئیل مجاهده خپل طواف کوه پـرې ږده یې ازدحام ډیرده پـروا نکـوي ، ما هیڅ هم ورته ونه وئیل په زړه کې وئیل چې په دې دنیاچې تـه جنتـي اوالله ته محبوب نه یـې نوبـه څـوک وي ، چې تـه کـومي دعاګـاني وایـي ستاپه خوله هغه ان شاالله مستجابې دي ، ګونـدي پـه مـایې یـې نیـک اثرپرې ووځي

## حکایتونه :

ماسره دننګرهار د اطلاعـاتو او کلتـور پـه ریاسـت کـې دکمپیـوټر تخنیکـي ملګـری وو (احمـد ضـیا ننګرهاری) نومیده هغـه دجهـاد پـه مهال له حقاني صاحب پـه فرهنګـي کمیټه کې موظف وو زیات سفرونه او مزلونه یې له حقاني صـاحب سره کـړي وو هغـه بـه دحقـاني صاحب داخـلاص، شجاعت، تـرحم اوسـخا عجیبه حکایتونه کـول، چې مشت نمونه خروار یې ذکر کوم.

## شجاعت اوزغم :

دخوسـت ددرګـي ولسـوالي جنګ وه زه یي له پیبنوره وغوښتلم مونږ دیو کاروان په شکل دمیرانشاه نه حرکت وکر بري نومي سیمي تـه ورسـیدو هلتـه دحقـاني صـاحب

دورورحاجي خليل الرحمن مرکز وه مجاهدين دجهاد لپاره چمتو شول ټانګونه او ډاډسني رواني شوي مشر حاجي صاحب هم دترصد او قوماندي لپاره دترصد لوړغره ته پورته شوی وو پدي وخت کي روسانو سخته بمباري پيل کړه دمشرحاجي صاحب شجاعت ته هلته زه متوجه شولم له الوتکي نه په حساب ۷۰ بمونه دغره په هغه څوکه چې مشرحاجي صاحب هلته موجودوو مسلسل وغورځول خو باور په خداي وکړی چي دا دجهاد سپه سالار پروت هم ونه ګړ او مجاهدينو ته قوماندو ورکوله چې مخکي لاړ شي الحمدلله ددرګي ولسوالي تَر دوه ساعتو پوري فتحه شوه ۸۰ عسکر او ۳۲ صاحب منصبان ژوندي ونيول شول او ۴۰ وژل شوي وه او ۱۵ مجاهدين هم شهيدان شوي وه په دې وخت کې احوال راغي چي خليل شهيد شوي قسم په الله مشرحاجې صاحب وويل چي اوس ماته ټول مجاهدين خليل دي خو دخداي ج. حکمت وه چي خليل دخپل ټانګ او ملګرو سره ژوندي او روغ رمټ ووت

**ترحم اووفاداري :**

کله چې خوست دحقاني صاحب په مشرى ونيولی شو، ټول نيول شوي عسکر اوصاحب منصبانوترجنرالانوپوري ترپايه ژوندي اوسلامت پاتي شول

تردې چې دجنرالانو کورنيو ته يې آن کابل ته معاشونه ليګل ،ګلم جمانو ته يوه يوه جوړه کالي او ۲۰۰ کلداري ورکړي او رخصت يي کړل نور صاحب منصبانو ته يې وويل چي کورني موله کابل څخه وغواړي ۳۰۰۰ معاش او ۳۰۰۰ دکور کرايه به درته درکوو مشرحاجې صاحب دعاطفي او مهرباني يو سمبول وه عبدالحق قوماندان ورته ډير وويل چي رازه دا جنرالان إعدام کو خو حقاني صاحب ورته وئيل چي نه دوي اوس اسيران اوتسليم شوي او بايد استفاده ورنه وکړو

باوروکړی چې کوم عسکربه حقاني صاحب ته ډاډمن معلوم شو نوله ځان سره به يې دمحافظ په ډول اوسول اوحتی ډيروته يې ودونه هم وکړل

کله چي کابل فتح شو دوي ټول حقاني صاحب خپلو کورونو ته ورسول دجنرال ګل اغا نه مي پوښتنه وکړه چي خرچه لري وې ويل هو ۸۰۰۰۰ کلداري مشر په مختلفو وختونو کي راته راکړي نورجنرالان هم په همدي شکل

**سخا:**

دمشرحقاني صاحب يوعادت وو چې کله به څوک ملاقات ته ورغی اويابه له کوم مجاهدسره مخ شونوحتمابه يې جيب ته لاس کاوه اونقدکمک به يې ورسره کاوه

هسې دمثال په ډول وايم : يوځل زه ديوځه کار لپاره ورغلم چې ترينه رخصت کيدم نو ۲۰۰۰ کلداري يې راته راکړي ،دهمدې ورځې په اوږدوکې بل کار پيداشوزه اوشهرت ننګيال ورغلوچې بيرته راتلونوبيايې ۲۰۰۰ کلداري راکړي غالباپه سبا بيازه ورغلم نومجلس کې يې ټولوته ۲۰۰۰ کلداري تقسيم کړي چې ماته راورسيدمامانعت وکړچې زه يې نه اخلم پرون دې دوه ځله راکړي ، حقاني صاحب راته مسکی شوچې پروانلري مجاهد يې په دې پيسوزه نه خراپيګم اوزمايادد‌ی چې له هرمجاهد سره دحقاني صاحب همدغه تعامل اودسخاوت اومرحمت نه ډک چلندوو.

پاي

# لارورکي ليکوالان!!...

ليکوال: موسی فرهاد

د پورتني سرليک پرځای زموږ په ټولنه کې عاميانه اصطلاح (گمراه) کارول کيږي. دا ټکی هغه چا ته کاريږي چې رښتيا يې هم د ټولني عقيدوي او کلتوري پولي ماتي کړي وي. په ناوړه او ناسمو لارو سر وي ، د بيا پرلار کيدلو چانس يې ډېر کم وي ، نو کليوال خلک ورته گمراه لفظ کاروي.

د دې ټکي (گمراه) اغيز د لار ورکي په نسبت ډېر کرکجن وي ياني خلک د هغه د بدو کړو وړو لامله د ډېري کرکي ښودلو په غرض دا لفظ ورته کاروي او وايي : فلانی ډېر گمراه دی.

نن سبا چې دا ځيني ليکوالان څه ترسره کوي ؛ ورسره مناسب هم همدغه عاميانه اصطلاح وي. مگر ما دلته د ليکوالی آدابو ته په کتو کليواله لهجه ونه کاروله بلکي لار ورکی ټکی مې ورته ذکر کړ، که څه هم دغه د سپيڅلي قلمي رسالت پلورونکي ليکوالان بايد په همدې (گمراه) او يا له دې نه ورپورته نومونو ونازول شي. ځکه چې د اشغالگرو په سيوري کې چې ټوپکوالو د ټوپک په شپيلۍ څومره ټوپکي جنايتونه د هيواد او هيوادوالو پرضد ترسره کړي ؛ په همغه اندازه دې قلم پلورونکو ليکوالانو د ملي او اسلامي اقدارو په توهينولو سره قلمي جنايتونه ترسره کړيدي.

د دوی دغه قلمي جنايات به د ملی تاريخ په محکمه کې سبا پر دوی د ملي او اسلامي خيانت شاهدي ورکوي . دغو ليکوالانو له اسلام ، جهاد او مجاهدينو سره د عقدې له امله خپل وجدان او ضمير د څه مادي گټو په بدل کې پلورلی او په شعوري ډول ، په ټيټو سترگو د يرغلگرو چوپړ ته ملا تړلي ولاړ دي.

دا يې هيره کړي چې د افغانانو نيکونو هيڅکله غلامی نه ده منلي ، هميشه يې د آزادۍ او خپلواکۍ په مبارزو تاريخ ډک کړی دی . د هر يرغلگر په وړاندي يې توره نه ده ټيټه کړي . دا خو پريږده چې د يرغلگرو سره دې په ټيټو سترگو ملگری سوي وي.

دا ډول گوډاگيان پخپله د يرغلگرو په سترگو کې هم يو بی وجدانه ، بې ضميره او وطن پلورونکي وگړي ښکاري.

يوه ډلگۍ ټوپکوال که شعور نلري ، تاريخ ، وجدان ، خپلواکي ، او ملي هويت نه پيژني د اشغالگرو سره په څنگ کې د خپل هيواد او خپلواکي غوښتونکو مجاهدو مبارزينو په وړاندي يې ټوپک اخيستی او ټوپکي جنايات ترسره کوي ؛ هغوی خو به خپل جهالت عذر گڼي ، پوهيږي به نه ، ليکوالان خو ځان د ټولني معنوي سترگي گڼي ، دوی به د الله تعالی او د ملت په وړاندي سبا څه معذرت وړاندي کوي...؟!

خصوصاً هغه طبقه ليکوالان چې ځانونه ، سيکولر نه ، بلکي بنستيز اسلامپالي بولي ، کله نا کله د تېر جهاد د پير حماسي هم ږغوي. ځانونه په يو نه يو ډول اخوانيت ته هم منسوبوي. د مستشرقينو په څير د اسلام د پراخي مطالعې دعوي هم کوي.

د بيلگې په توگه به د يوه سړي يادونه وکړم : څو ورځي مخکي مي د يوه ليکوال ليکنه ولوستله چې د هغو پيښو يادونه يې په کې کړي وه چې د طالبانو په نوم ترسره کيږي او ملکي کسانو ته پکي زيان اوړي .

لومړی به دا ووايو چې که چيري رښتيا هم د طالبانو يا بل هر چا له لوري په قصدي توگه داسي بريدونه ترسره کيږي چې هغه د بې گناه خلکو د وژلو سبب کيږي؛ نو دا په هرصورت د غندلو دی . مجرمينو ته يی سزاء ورکول واجب دی. له همدې ځايه ده چې هميشه مجاهدينو دا ډول پيښې غندلي او ترڅنگ

يې د مجرمينو د موندلو او هغوی ته د سزاء ورکولو ژمنې کړي او د شهيدانو له کورنيو سره يې د زړه له تله خواخوږي څرګنده کړي ده

په هر صورت ، ياد ليکوال چې د څه مودې لپاره يې د کابل په کومه وزارتخانه کې د نطاقۍ نوکري هم لرله ، او بيا نوموړی بل کوم هيواد ته د جاسوسۍ او خيانت په تور په کابل کې زنداني او بيا راخوشې سو.

نوموړي له يو شمېر عربي کورسونو او معهدونو د عربي ژبې شهادتنامې هم ترلاسه کړي دي. د همدې عربي لنګويج زدکړې ده ته دومره جرأت ورکړيدی چې اوس پخپلو ډيرو رسالو او ليکنو کې د اسلام تفسير و تعبير په خلاص مټ له خپلې ګيډې کوي . چې څه يې خوښه وي غندي يې ، تحريف يې کوي ، په بل ډول يې تعبيروي . خلاصه دا چې د جهاد ، مجاهدينو او مسلمانانو د غندلو او په هغوی پسې د بې بنسټه تبليغاتو لپاره بهانې او پلمې لټوي . ترڅو بهرني يرغلګر له ځانه راضي ، مسلمانان ناراضه او په بدل کې يې ثمناً قليلاً ترلاسه کړي.

ظاهراً خو دغه ليکوال پخپله دغه ليکنه کې چې ما ولوستله ؛ پر يادو پېښو غمرازي ښيي ، ولې په حقيقت کې يې هدف بل شی دی. دا ډول پيښې په مجاهدينو پسې ـ تړي او د نړۍ پر مسلمانانو ږغ کوي چې ولې خاموشه ياست ، ولی نه راپورته کيږئ ، ولې اسلامي مدارس او علمي مراکز د دې خلکو يعنې مجاهدينو پرخلاف فتوی نه ورکوي . زموږ په وطن کې دومره ستر ظلم روان دی ، دې خلکو جګړه پيل کړې ، بې امنې يې راوستې. بالاخره په افغانستان کې روان جهادي مقاومت يې تلبيس ابليس ، او يو شيطاني حرکت بللی . دې ته ورته نوري ډېرې ليکنې يې همېشه پر دې موضوع راڅرخي . د يرغلګرو په څنګ کې ولاړ ، ځان بنسټپال اخواني مسلمان معرفي کوي . د اسلام او د وطن د دفاع جهادي مقاومت ته تلبيس ابليس وايي ، په دې پلمه چې ګويا زه ناوړه پيښې غندم. په داسې حال کې چې د امريکا يرغل ناروا نه بولي ، د هغوی بمبارونه ، ټول وژنې ، اسارتونه ، تباهي او وراني ناوړه عمل نه بولي . په نوره نړۍ کې چې پرمسلمانانو يو کفري هجوم را روان دی . ښاغلی ليکوال د نړۍ پر مسلمانانو ږغ نه کوي چې راپاځئ د تلبيس ابليس مخه ونيسئ . په مصر ، فلسطين ، برما ، سوريه ، عراق ، او نوره دنيا کې چې مسلمانان په شعوري ډول ځپل کيږي ؛ پرځای د دې چې دغه ليکوال يې ظلم وبولي ؛ بلکې برعکس د مسلمانانو ډلې د غلو او داړه مارو مستبدي غدې بولي . هو بهو هغه اصطلاحات چې امريکايان او نور متجاوز کفار يې د مسلمانانو پرضد کاروي ؛ زموږ دغه بې ضميره ليکوالان يې ورسره زمزمه کوي.

دا يو ليکوال نه دی ، ډېر نور د ده په څير شته چې بايد سړی ورنه پوښتنه وکړي چې تاسو پخپل ګريوان کې وګورئ ، وجدان مو قاضي کړئ ، سياسي نه ، بلکې ايماني قضاوت ترې وغواړئ چې آيا په افغانستان کې اوسنی جهاد ناحقه دی ؟ ، کفارو د مسلمانانو پر حريم تيری نه دی کړی ؟ پر موږ مسلمانانو باندې د خپل دين او وطن دفاع فرض نه ده ؟ زموږ د نيکونو تاريخ له دا ډول دفاعي جهادي مبارزو څخه ډک نه دی ؟ زموږ الهي کتاب قرآن پر موږ جهاد فرض کړی نه دی ؟ د انګريزانو ، بيا د روسانو او اوس د امريکايانو د يرغل ترمنځ کوم توپير شته ؟ راځئ د نورې دنيا په تاريخ کې هم سترګې وغړوو ، پر کوم هيواد چې يرغل وشي که څه هم کفري هيواد وي ، د هغه هيواد خلک د يرغلګرو مقابلې ته را دانګي او که يې ملاتړ و استقبال ته ؟ او څوک چې يی مقابله وکړي دا به پر حق وي او که هغه ، چې د متجاوزينو په ملاتړ کې ودريږي. ؟ دا اوس چې امريکايان دلته راغلي ، وايي موږ د خپلې خاورې خپل هيواد (امريکا) د حفاظت لپاره راغلي يو. يعنی هغوی زموږ پرهيواد تيری د خپل وطن د دفاع جنګ بولي. خو زموږ دا ګمراه ليکوالان او د دوی په شان څو نورو کم ظرفه وطنوالو وګړو د خپل ضمير او وجدان سودا په ډېر لږ څه کړي ، او په دې سره يې خپل ماضي او مستقبل دواړه داغداره کړي دي . پرځای د دې چې د خپل دين او وطن دفاع وکړي ؛ د يرغلګرو چوپړ ته يې ځان سپارلی . په ډېرو منحرفو توجيهاتو يې په مجاهدينو پسې د بې بنسټه تبليغاتو لړۍ ژوندۍ ساتلې ده . د ملي او اسلامي خيانت له تور داغه يې د ځان ساتلو احساس بيخي له لاسه ورکړی دی.

والی الله المشتکی وبه المستعان




# د ټرمپ په جګړه ییزه ستراتیژۍ کې
# د B52 اغیز

احمد مختار

وروسته تر دې چې د امریکا ولسمشر ډونلډ ترمپ د افغانستان لپاره خپله جنګي ستراتیژي اعلان کړه دلته د امریکایي ځواکونو هوایي بریدونو هم زور واخیست.

پرولسي سيمو دغه بريدونه له ناآرام ولايت کندوز څخه پيل ، تر هلمند، اوروزګان ، ننګرهار، پروان ، لوګر ، غزني او ... پورې ورسیدل.

په يادو بريدونو کې چې ټول پرکليوال ميشتو سيمو تر سره شول په سلګونو ملکي وګړو ته چې ډيری يې ښځې او ماشومان وو درانه تلفات واړول شول.

په پروان کې د امريکايي بمبار هدف د یوه واده مراسم و چې د خواوشا سيمو ډيرو خلګو ورکي ګډون درلود او د تلفاتو شميره يې ۸۰ کسانو ته ورسيده.

هماغه و چې د سيمو خلګو د امريکايانو د دغه وحشيانه عمل په مقابل کې په لاريون لاس پورې او له ځانه سره يې د مرګ په امريکا شعارونو ترڅنګ د اسلامي امارت سپين بيرغونه هم ليږدول.

امريکايي پوځيان او په هيواد کې د هغوی تحت الحمايه لاسپوڅې رژيم دغه ړندې بمبارۍ د ترمپ د جنګي ستراتيژۍ د برياليتوب لامل بولي او غواړي په افغانستان کې د هوايي بريدونو د زياتوالي لپاره د B۵۲ په شمول پر مختللې جنګي الوتکې وکاروي.

په دې اړه د سپتمبر د مياشتې په څلورمې نيټې واشنګټن پوسټ ورځپاڼې رپوټ ورکړ چې امريکا غواړي له څو زره سمندري ځواکونه سره يو ځای يوشمير بي ۵۲ الوتکې افغانستان ته ولېږي.

د ورځپاڼې په حواله دا ځواکونه او الوتکې افغانستان ته د امريکا د نوې ستراتيژۍ پر اساس لېږل کېږي.

واشنګټن پوسټ په افغانستان کې د ميشتو امريکايي چارواکو له خولې ويلي چې تاکل شوې ده افغانستان ته

ایــف ٦، ایــف ١٦، اې تنـدربولټ او بـي ٥٢ ستراتیژیکې الوتکې واستول شي.

د دوی په وینا د امریکا د سمندري او توپچي ځواک سل کسیزې ډلې به د وسله والو طالبانو د له منځه وړلو په غرض د افغانستان په بېلابېلو سیمو کې ځای پر ځای شي.

خو د پوځي کارپوهانو له نظره یادې الوتکې یواځې د ولسي خلکو له مرګ ژوبلې پرته د طالبانو (مجاهدینو) په له منځه وړلو کې هیڅ موثریت نه لري.

ځکه د امریکایي یرغلګرو او د هغوی د ملاترو په خلاف مجاهدین یواځې چریکي (د خرپ او ترپ عملیات) تر سره کوي چې په دې سره هغوی د ځان لپاره یو ثابت مرکز او د تجمع ځای نه لري.

ایف ٦، ایف ١٦، اې تندربولټ او بي ٥٢ الوتکې چې امریکایي ځواکونه یې د بمباري لپاره په افغانستان کې کاروي ، هغه له نظامي لحاظه یواځې د ثابتو اهدافو د له منځه وړلو لپاره کارول کیږي.

د افغانستان د پوځ یو پخوانی متقاعد نظامي جنرال ښاغلی عتیق الله امرخیل وایي چې B٥٢ او هغه الوتکې چې امریکایان یې اوس په افغانستان کې د طالبانو خلاف جګړه کې کاروي اصلا د هیوادونو په سطحه د مجهزو پوځونو او د هغوی د ثابتو اهدافو د له منځه وړلو لپاره کاریږي نه په چریکي جګړو کې د چریکیانو د نابود ولو لپاره.

همدا وجه ده چې د امریکایي ځواکونو لخوا د دغو الوتکو له کارولو سره سم په افغانستان کې د ملکي تلفاتو کچه هم تر بل هروخت زیاته شوې او په هر ځای بمباري کې یې لوړی قربانیان ولسي وګړي وي.

جنرال عتیق الله امرخیل په دې اړه له طلوع تلویزون سره په خپلې مرکې کې وایي:

د ترمپ په ستراتیژۍ کې د طالبانو خلاف د B٥٢ په شمول د پرمختللیو الوتکو کارونه د طالبانو د له منځه وړلو لپاره نه ، بلکې د عامو افغانانو د وژنو لپاره ده ، ځکه د هغوی هربم چې زرګونه کیلو وزن لري په ملکي سیمو باندې غورځول د زیاتو تلفاتو لامل کرځي ، او طالبان په کلیوالو سیمو کې د مشخصو او ثابتو مرکزونو د نشتون له امله هیڅ کله د دغو الوتکو هدف نشي ګرځیدای.

دا پوځي جنرال زیاتوي چې امریکایان دا هوایي بریدونه د نظامي لوائحو له مخې نه بلکې د امریکایي جاسوسانو د ناسمو اطلاعاتو پراساس تر سره کوي همدا وجه ده چې په هره بمباري کې د هغې ټول قربانیان ولسي وګړي وي او دا کار د امریکایانو او د حکومت په خلاف د عام ولس پر ذهنیت ډیر منفي اغیز لري.

* * *

# داهځه به ناکامه وي!

عابد

پرافغانستان دامریکا لـه تـیري سره سم دلتـه پـه دې سیمه کې یوداسې بدلون او تحول ترسترګو شو چې رامنځته کېدل یې زمونږ له تصوره لرې و .

هره پېښه او هر خبر به دپېښې په ځای کې یوډول و ، خو له اوربېدونکو وسېلو به په چورلټ بدلون خلکوتـه واورول شو، تـردې چې خلک لـه دغـه بـدلون او اوښـتون سره عـــادي شـــول او دتبلیغاتي وسایلو مؤثریت او اغېـز هغسې چـې پـه لومړي سرکې و، ډېر راکم شو خو سره ددې هم اصل ته ددغـو وسـایلو رجـوع ترسـترګو نـه شـوه او لا پـه هماغـه معکوس اوښتون چورلي .

دلامل او سبب په ګوته کولو کې یې دهغو خبره یقینـي کېږي چې دوی یې سخت دریځي! بولي . دغـه لـه معنویتـه بې برخې رسنۍ چې ټولې لـه یـوه نظریـاتي ماشـینه راوتلې اودتېلو پـه ځـای یـې امریکـایي ډالـر خـوراک و دوخـت پـه تېرېدو سره چې دغه تېـل پـه کمېـدو شـول ورسره دماشـین رفتار سست او درېدو ته قریب شو، ډېرې رسنۍ په پای کې خپلو همدغو محسنینوته په ډېرو بدو ردو ویلو سره پـای تـه ورسېدې او بیایې چانوم وانخستلو .

اوس چې امریکایان او مؤتلفین یې په افغانستان کې له ماتې سره مخ دي او په نظامي برخه کې یـې لـوی پېغـور پـه برخه کېدو دی ° یوځل بیایې رسنیوته مخـه کـړې اولـه دې لارې یې دویم کوشش شروع کـړی، کـه وشي چې لـه دغـه پېغوره ځان وژغوري ، ټولې نړیوالې او سیمه ایزې رسنۍ لـه دغه استکباري تاړاک نه په وېره او یاتمـه اوس دمجاهـدینو په مقابل کې له یرغلګرو سره په یـوه صـف کـې ولاړې دي او پـه دې وروسـتیوکې خـو یـې دغـه پلـوي او یواړخیزتـوب ترشرموونکي حده رسیدلی .

زمونږ پرهیواد دامریکا، ناټو او ملګرو ملتونو لـه تجـاوز اویرغل نه نېولې ترنن ورځې کابو دوه لسیزې ووتلې په دغـه ټوله اوږده موده کې متجاوزین پرهغه څـه بـرلاسي نـه شـول چې ددوی هدف و او هغه یې په افغانسـتان کـې دآرام ساه اخیستل و، بالاخره ددغه ترخه حقیقت اعـتراف تـه مجبـور شـول چـې خپلـه ماتـه پـه افغانستان کې ومنـي . لـه دې سره یـې هڅـه وکـړه دیوه نوي پړاو په لور دګام اخیسـتنې پـه نـوم دخلکـو نظر واړوي اوتریوحـده لـه دغــې رســوایۍ ځــان وژغوري، ځکه یې دنوې ستراتېژۍ دجوړولـو پـه وعـده ښـه اوږده ساه واخیسته، ددغې استراتېژۍ اعلان ته دخلکو تمـه وه چې شاید دبشردوستۍ یوڅه خواږه به پکې ووینـي، خـو ددغې تمې خلاف نوی پړاو له اور او وینو جوړ و.

داځل تفاوت داو چې داور او وینو په دغـه نـوي پـړاو کې یې له ځان سره نړیوالې رسنۍ هم په ټوله معنی همغږې کړې اوله یوې مورچې دافغانسـتان لـه خلکـو سره پـه جګـړه دي.

پوښتنه داده چې سره جګړه هرڅومره تېـزه شي اوخپـل ټـول شـدت واخـلي دتـودې جګـړې یـوه سلنه هـم نـه شي خپلـولی، ځکـه تـوده جګـړه خپلـو اهـدافو او اغراضـوته د رسېدوعملي هڅه ده چـې خپـل ټـول قـوت او توانـایي پکـې کارولی شي، ولې سړه جګړه له خپـل ټـول اغېـز او مؤثریـت سره چـې لـري یـې دفزیکـي حرکـت پـه وړانـدې یومعنـوي ارزښت لري .

نو په نظامي ډګر کې یې چې له خپل ټول قوت اوځواک سره ماتې په برخـه شـوه، څنګـه بـه وکـولای شي دتبلیغـاتي وسایلو په استخدام به دغه جګړه وګټي ؟

# دعسکرو اوطيارورالېږل به

# دښمن ته څه ګټه ولري؟

حسن زوی



دمحترمو لوستوالو په علم کې به وي چې دامريکانوي ولسمشر ـ ډونلډټرمپ له لورې دافغانستان په اړه دنوې خوراخطرناکې ستراتېژۍ درامنځته کېدو په لړ کې افغانستان ته د۴ زرو نورو فوځيانو دلېږلو پرېکړه کړيده او ويلې يې دي چې پردې سربېره به په افغانستان کې هوايي بريدونه ډېر زيات شي؛امريکا اعلان کړيدی چې دبي ـ ۵۲ په ګډون دغټو بمونو غورځونکې ګڼې طيارې افغانستان ته استوي.

په جنګونو کې ددښمن دمادي طاقت،وسايلو او تبليغاتو نه مرعوب کېدل يوشی دی او ددښمن دافرادي او مادي طاقت په اړه اعتراف کول او ددښمن له لورې دپېښ شويو او پېښېدونکو ځاني او مالي تاوانونو اوضررونو منل بل شی دی.

ددښمن دمادي طاقت نه مرعوب کېدلو پايله شکست وي او ددښمن دمادي طاقت په اړه اعتراف کول دښه تدبير او دښمن ته دښه تياري سبب ګرځي.

دامريکا په مشرۍ کې دصليبي اتحاد او له دوئ نه وړاندې دروسانو او انګريزانو بلکې دهرزبرځواک په مقابل کې چې افغان مسلمان ملت ندی مرعوب شوی داداسې حقيقت دی چې ټوله نړۍ يې مني؛هيڅوک ترې انکار نه کوي نو ځکه يې په اړه ددلايلو دوړاندې کولو اړتيا نشته.

او ترکومه چې ددښمن دزور خبره ده نوموږ ترې هيڅکله هم انکار ندی کړی اونه يې ترې کوو .

موږ دا منو چې پدې مادي نړۍ کې دترټولو ستر طاقت په مشرۍ کې دانساني تاريخ دترټولو ستر رامنځته شوي اتحا دسره مو مقابله ده.

له دې څوک انکار نه شي کولای چې دجنګ په ډګر کې ددې ۱۶ کلنې اوږدې مقابلې په ترڅ کې دې اتحاد ته ډېر ستر مالي او ځاني تلفات رسېدلي دي چې له امله يې ددې اتحاد ډېر مهم ارکان تېښتې ته اړ شويدي خو دا چې دجنګ ډګر زموږ هېواددی نو طبعي ده چې ځاني او مالي تاوانونه هم همدا موږ ته زيات رسېدلي دي ځکه چې ددې لوی اوپه مادي لحاظ دخوراځواکمن دښمن ټول هوايي او ځمکنې طاقت او وسايل زموږ پرضد کارول کېږي ؛ په داسې حال کې چې زموږ وسايل ددښمن دوسايلو سره هيڅ دپرتله کېدو وړندي.

موږ له دې هم انکار نه شو کولی چې دښمن په مستقبل کې هم دې ملت ته دتاوانونو رسولو توان لري او دا چې دا دښمن له حده زيات ضدي،متکبراو داسلام او مسلمانانو په وړاندې سخت متعصب دی نو ښکاري داسې چې دکاميابۍ نه دناهيلۍ په همدې حالت کې به هم افغانانو ته دتاوانونو رسولو لړۍ ته دوام ورکړي اوپه همدې هدف به دافغانستان اشغال ته دڅه مودې لپاره نور هم ددوام ورکولو هڅې وکړي چې افغانستان ته د۴ زره نورو عسکرو او نورو طيارو رالېږل دهمدې هڅو يوه برخه ده.



دلته دطالبانو په مقابل کې دجنګ ګټلو تصور بيخي له منځه تللی دی؛دامريکا يو ملکي او نظامي مشر هم دجنګ ګټلو تمه او هيله نه شي ښکاره کولی او نه يې ښکاره کوي بلکې ټول ښه په صراحت وايې چې دا جنګ زموږ لپاره دګټلو وړندی.

نودنورو عسکرو او طيارو راليږل امريکا ته يواځې همداګټه رسولی شي چې دافغانانو په کورونو ښه ډېر بمونه راوغورځوي؛افغانانو ته ښه ډېر ځاني او مالي تلفات وروارووي او له همدې لارې دخپلو ټولو ځاني او مالي تلفاتو غچ له عامو افغانانو نه واخلي.

غربي رسنۍ هم همدا خبره مني او وايې چې افغانستان ته دنويو ځواکونو دلېږد په نتيجه کې دزياتېدونکو بمباريو ډېر قربانيان به ولسي وګړي وي.

دلندن چاپ ګارډين ورځپاڼې ليکلي چې افغانستان ته دنورو فوځيانو دلېږلو او هوايې بريدونو دزياتولو ترټولو زياته بيه به ولسي افغانان پرې کوي،ورځ پاڼې ليکلي چې دهوايې بريدونو دزياتولو سره به امريکايې فوځي چارواکي دجګړې ډګر له لرې ځاري؛پرمخاليفينو به بريدونه زياتوي خو ددغې بريدونو ډېره بيه به ولسي خلک پرې کوي؛ګارډين دامريکايې طيارو دوروستيو بريدونو يادونه کړيده چې په ترڅ کې يې دهرات په شين ډنډ ولسوالۍ کې لږترلږه ۲۶ تنان وژلي وو چې ټول مېرمنې او کوچنيان وو او يو هم پکې سړی نه و؛ورپسې يوه ورځ بعد يې دلوګر ولايت په باري دښتې کې هم پرولسې وګړو بمبار کړی چې په ترڅ کې يې ۱۱ ولسي وګړي ووژل شول.

ګارډين وراندې ليکلې چې د۲۰۰۱ له پيله چې امريکا پرافغانستان يرغل کړی روان ۲۰۱۷ م کال دولسي افغانانو لپاره ترټولو خو نړی کال دی.

نو لنډه دا چې دځواکونو دزياتولو او داشغال اوږدولو له لارې امريکايان او نوراشغالګر افغان ولس ته غټ مالي او ځاني تاوانونه وراړولی شي خو خپل يو فيصد هدف ته هم نه شي رسېدلی چې پدې سره به دامريکا او نورو ښکېلو غربي هېوادونو پروړاندې دافغانانو او دنړۍ دټولو ژمنو مسلمانانو په نفرت او دښمنۍ کې لازياتوالی راشي او په نړۍ کې به لا زيات بدنام او اعتبار ته به يې لازيات زيان ورسېږي چې دادامريکا او نورو ښکېلو غربي هېوادونو دولسونو لپاره دزيات فکر وړ خبره ده.

دامريکا او ټولو لويديځو هېوادونو ولسونه بايد پدې پوه شي چې دافغان مسلمان او مجاهد ولس لپاره عموماً او داسلامي امارت لپاره په ځانګړې ډول داشغالګرو دمنګلو نه دخپل هېواد ازادول او دخپل دين ،ځان او عزت نه دفاع دخپل ځان نه ډېراهميت لري نو ځکه ترې خپل ځانونه جاروي او پدې لار کې دځانونو جارول او هرډول تکليف دځان لپاره لوي سعادت ګڼي؛که دښمن هرڅومره لوي او ځواکمن وي نه ترې مرعوب کېږي او نه يې په مقابل کې سرټيټوي.

نودامريکا او نورو غربي ولسونو نه دافغان ولس غوښتنه دا ده چې نور ځمکني حقايق ومني؛دخپلو نااهلو مشرانو پرضد راپورته شي او دداسې اقداماتو نه يې منع کړي چې هيڅ ګټه نه لري او ددوئ دنورو ځاني او مالي تلفاتو او په نړۍ کې دبدنامۍ سبب ګرځي.

که يې دا کار وکړ خپل ځان ته به يې ګټه رسولې وي ګنې بدنامي اولوي تاوانونه يې يقيني دي ؛بيا به لاسونه مروړي خو وخت به ځنې تېر وي.

# یقینا! همدا یې زمانه ده

لیکوال: صفي الله "رائد"

د زمانې روان حالات لکه دمنې ډارونکي بادونه ډېر بې خونده او بې وخته اوړي، راوړي او بدلېږي. ځینې خلک بیا لکه مرغان د هوا بدلون سره سم بدلېږي. څوک روحا، جسما او څوک بیا بیخي ذهناً بدل شي. دچا همت، غیرت او شهامت کمزوری او څوک بیا بیخي ایماني بدلون ومومي.

څوک بیا دومره بدل شي چې ان له اسلام او قرآني ایتونو څخه منکرین وګرځي.

هو! څوک له جهاد، څوک له زکات څخه انکار وکړي. هو! داسې خلک هم شته چې روڼ سحر کې ویده، خو سپین سپېڅلی لمر نهویني، ستورو ته کیسې خو سپینه سپوږمۍ نه ویني. هو! د غفلت خوب یې دومره سترګې پټې کړي چې د ستورو له ځلا او د سپوږمۍ له ښکلا څخه منکر شه چې، دلمر دا دومره لوېه رڼا هم نه ویني.

په رښتیا چې په جهاد رد د یو سپین سپېڅلي لمر په وړانګو رد ده.

له جهاد نه انکار خو د لمر له رڼا انکار ده!

او بیا سپېڅلی استشهاد نه منل خو دسپینې سپوږمۍ رڼا او ښکلا نه منل دي چې ماشوم یې هم لا درک کولای او منلی شي، خو در اصل دا په حقیقت سترګې پټول دي.

چا راته د یو مشهور عالم دخولې کیسه کوله: چې یوه ورځ یې درس ته ناست وم او په ښکاره به یې استشهادي مجاهدینو ته د لیونیو جمله کاروله، او ویل به یې چې اوس کله جهاد شته؟!

طالبان لیوني دي چې له ټرمپ سره ډغرې وهي. دومره ستر ځواک سره ډغرې وهي.

هو! د نړۍ پرمخ دا یوائینی عالم ندی چې د جهاد څخه انکار کوي؛ بلکې ده ته ورته نور ډېری په نوم علماء هم شته چې د سیاف او مجددي په نقشِ قدم یې، قدم ایښی او د جهاد د نه شتون فتوای وې صادروي.

هو! دوی دمادیاتو په بدل د الهي کتاب تحریف ته هم تیار دي، خو داچې هغه معجز کتاب دی؛ نو دوی بېچارګان! هم ترې عاجز دي.

کله چې مې داسې خبرې واورېدې هک حیران او په فکرونو کې ډوب شوم. دخپل شیخ صاحب مبارک هغه درس مې غوږونو کې کړنګاهار جوړ کړ او سترګو ته مې د ابوداود شریف (بابٌ في دَوَامِ الْجِهَادِ) ودرېد.

له زیاته خفګانه تر ډېره وخته د رسول الله دغه حدیث په فکرونو کې ډوب کړی وم او باربار به مې له ځان سره اړاوه راړاوه.

یاد حدیث چې دجهاد او د آخري زمانې د ځینې علماوو چې له جهاد څخه به انکار کوي، صحابه کرامو ته پکې کیسه بیان شوې، رسول الله ﷺ فرمایي: (لَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي يُقَاتِلُونَ عَلَى الْحَقِّ ظَاهِرِينَ عَلَى مَنْ نَاوَأَهُمْ حَتَّى يُقَاتِلَ آخِرُهُمُ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ).

ژباړه: همیشه به زما په امت کې یوه ډله وي، په حق(دحق په دفاع کې) به جنګیږي، دوی به غالبه وي په هغو باندې څوک چې ورسره دوښمني کوي، تر څو چې اخرینی ددې امت وجنګیږي له مسیح الدجال سره.

شیخ صاحب ویل: قاضي عیاض خپل کتاب (شفا) کې دې حدیث سره دا توکړه هم راوړې چې:

قال رسول الله –صلی الله علیه وسلم–: ((لا یزال الجهاد حلوا خضرا ما قطر القطر من السماء وسیأتي علي الناس زمان یقول فیه قراء منهم: لیس هذا بزمان جهاد فمن أدرک ذلک الزمان فنعم زمان الجهاد، قالوا یا رسول الله أو أحد یقول ذلک؟ قال: نعم من لعنه الله والملائکة والناس أجمعون)

ژباړه: همیشه به وي جهاد، خوږ او تراو تازه تر څو پورې چې راڅاڅي یو څاڅکی له اسمان نه، زرده چې را به شي په خلکو باندې داسې یوه زمانه چې وایې به علماء ددوی: دا زمانه دجهاد نه ده!

پس چا چې وموندله دغه زمانه، پس همدا ډېره ښه زمانه دجهاد ده.

صحابه وو ویل: اې دالله رسوله! ایا یو کس به داخبره کوي؟! رسول الله ﷺ وویل: هو! دا به هغه کس وي چې لعنت کړی پرې الله، ملائکه او ټولو خلکو.

شیخ صاحب د یاد حدیث تر تشریح وروسته وویل: یقینا! نن سبا هماغه زمانه راغلې چې اهل قراء(علماء) یې لګیادي وایي: نن سبا جهاد نشته!

خو! له دې حدیث څخه رامعلومیږي چې: یقینا! همدا یې ډېره ښه زمانه ده. هو! همدا یې زمانه ده.




#عرفان الله عرفانی

## مات زړګی

ډېرو مات کړی مې زړګی دی ته یې مه ماتوه!
نور خو له غمه لېونی دی ته یې مه ماتوه

دا ګل یې ته درسره واخله امانت جانانه
ګوره چې ډېر نازک غمی دی ته یې مه ماتوه

څو واره مخکې د بېلتون غشو زخمي زخمي کړ
لکه د ګل غونډې تنکی دی ته یې مه ماتوه

وربانـدې وکړه د چنار په څېر د مینې سیوری
د کلیوال ګودر منګی دی ته یې مه ماتوه

نور خو څه نه لرم یو زړه دی دا هم تاته ډالۍ!!!
د ښاپیرۍ د لاس بنګړی دی ته یې مه ماتوه

په دومره خلکو کې مې سترګې یاره تاته اوړي
ستا ( عرفاني ) خو سکنی دی ته مې ماتوه

## په لمانځه ولاړ ؤ

#ملامطمئن

شونډې یې وچې سر ګکر ؤ په لمانځه ولاړ ؤ
د یار په مخ د غم اثر ؤ په لمانځه ولاړ ؤ

پرې ښکارېده له لرې،لرې خړ غبار د سنګر
غازي د څو ورځو نهر ؤ په لمانځه ولاړ ؤ

تور غټ زلفان یې په اوږو خواره واره پراته وه
څومره ښایسته،ښکلی بشر ؤ په لمانځه ولاړ ؤ

د عشّق په بحَر کې تر دې حده ډوب شوی ؤ چې
له خپله ځانه ناخبر ؤ په لمانځه ولاړ ؤ

په مناجات کې یې له خدایه شهادت غوښتلو
په خوله یې لفظ د کوثر ؤ په لمانځه ولاړ ؤ

غازي سجده کې لوی رب ته څو کیلې کولې
وخت مطمئنه ماذیګر ؤ په لمانځه ولاړ ؤ

## غزل: عبدالمجید ترابي

اوس می هم یولاس کی توره بل کی ډال ده
دامی فن دامی هنر دامی کمال ده
له فطرته می نفرت له غلامۍ د
ما په سروینو ګټلی استقلال ده
په ماپاتی جواب ځکه دچانشته
ماحل کړی د هرچا دمینی سوال ده
لامی غشی دغلیم په ټټرخخ دی
ما مات کړی دهر عصرهردجال ده

# لکه حرم....

## #همت بدري

چې په کافر کوې ګذار ستا هر قدم ښکلوم
غازي جانانه ستا لاسونه به هر دم ښکلوم

ژړکيه تا چې پرې ټوټه کړل زغروال ټانګونه
ژړکيه ستا په لاس جوړشوی هغه بم ښکلوم

ته چې امت يې په سينه کې لکه زړه ساتلی
طالبه ستا معصوم تندی لکه حرم ښکلوم

تاچه هميش دمظلوم سربانديي په مينه اينبی
له ميني ډک ستاهغه سپين لاس دکرم ښکلوم

زخمي زړګي ته مي ټکور ستاپه ديدن ورکوم
غازي جانانه ستا چشمان لکه مرحم ښکلوم

ستا له دريغ ستا له ايمان او عقيدې نه قربان
ستا په لاسونو کې دسپين سالار عَلم ښکلوم

بدري همت به دي دزړه په حجره کې ساتم
طالبه ستا حسين تاريخ په خپل قلم ښکلوم

# غــزل

شاعرهمت « کوچی »

خدايه ج مړه وبښه ژوندي راته ژوندي وساته
نورمې خواره خواره ملګري له مرګي وساته

نورې مووچي کړه له اوښکونه نمجنې سترګې
نور مو له غمه چرته لري زندګي وساته

چې دامالت ورڅخه رنګ دخاموشی وانخلي
له خاموشيو نه مو مست مازديګري وساته

ربه کړه ماتې دقاتل سپيره خزان منګولې
ترې مو دکلی ګلابونه اوسپرلي وساته

يوڅوک دې اوس هم دعاګانوکې کړې ياد داسې چې
خدای دې له بدو بدو سترګو نه خوندي وساته

کوچيه" زه به دې ماشوم يادپه زړګي کې ساتم
خوته مې هم نازک ارمان له جدايي وساته

رباعی

امین پور

ای غم تو که هستی از کجا می آیی
هر دم به هوای دل ما می آیی
باز آی و قدم به روی چشمم بگذار
چون اشک به چشم آشنا می آیی

***

بر زخم دل شکسته ام نیش چرا؟
باری ز غم و غصه مرا بیش چرا ؟
زخمی اگر از مــردم بیگانه خورم
مشکل نبود ولیکن از خویش چرا؟

# دهندوستان او امریکا

## د ستراتیژیکي ملګرتیا ګډ اهدف او لوری!!

جانباز رحیمي....

پـه وروســتیو کــې دامریکــا ولسمشر ډونلډ ټرمپ دجنوبي اسیا په باب د خپلې جنګې تګلارې اعلانولو پـه مهال هندوستان دامریکـا لپاره د نیږدې ستراتیژک ملګري په توګه یـاد کړ او هم یې په افغانستان کې دهغـه د تیر کـردار نـه پـه مننـه کولـو راتلونکي کـې ورتـه د نـور کـردار او رول تـرسره کولو بلنه ورکړه....

ټرمـپ هند تـه پـه بلنـه ور کولـو سره دپیغام هم ورکړ چې افغانسـتان د دوی مسـتعمره دی؛ هـیڅ خپلـواک هېـواد نـدی او یـوازې هغـه هېوادونـه پکې رول او کردارترسره کو ل شي چې هغوی د امریکا خوښ وي....

له شک پرته هندوستان پـه دې عـلاوه چـې پـه جنوبي اسیا او منطقـه کـې دچـین وروسـته یـو ګـڼ نفـوس لرونکـی ، فعـال او مهـم هېـواد دی،د نیـږدې درې سـوه ملیونـو مسـلمانانو ټـاټوبی هـم دی؛ پـه دې وجـه ورسره دمسـلمانانو علاقمنـدي او د راشـې درشې اړیکې خورا ژورې ریښې لري

ددې ترڅنـګ هنـد پـه وروسـتیو کلوکې دمهمو اقتصادي پرمختیاوو پـه ترلاسـه کولـو سره دسـیمې یـومخ پرودې هېواد هم ګڼل کېږي ...

هـو! هندوسـتاني سیاسـتوالو لـه برتـانیې نـه د ازادۍ د ترلاسـه کولـو وروسته په سیمه کې دسیالۍ او رقابت یـوه داسې دیپلوماسۍ رامنځتـه کـړه چې دهغې ډېره سلنه دمسلمانانو سره دتربګنۍ او دښـمنۍ لرلـو پـه ذهنیـت ډېـزائن او جـوړه شـوې، پـه دې وجـه هندوستان له پیله د یوسیمئیز رقابـت پـالنې پـه کشـمکش کـې ښـکېل او مصروف دی.

ددې لپاره یې تل دا هڅـه کـړې چې افغانستان دخپلـو موخـو او اهـدافو ترلاسه کولو لپاره د ډال اوسپر په توګه استعمال کـړي ، پـه دې لـړ کې هنـد همیشه مخامخ دافغانانو سره دوستانه اړیکـو جوړولوپـه ځـای د یرغلګـرو ځواکونو لمن نیولې او دهغوی پـه مټـو یې افغانسـتان کـې د خپـل منفي رول دخورولو هڅې کړې یعنې هندوستان دافغان مسلمان ولس پـه مقابل کې تل داشغالګرو لوری نیولی او دهغوی نه پـه کلکه ملاتړ کړی ، کوم چـې ترننـه دوام لري...

پـرون چـې دلتـه د شوروي سرې لښکرې میشت وې؛ هندوستان پخپـل ټول ځواک دشوروي لښکرو لـه شتونه دفـاع او ملاتـړ کـاوه او نـن چـې دلتـه امریکـا پـوځي شـتون لـري هندوستان دامریکـا ملاتـړ ی او ملګـری دی او دافغان ولس په ضد ولاړدی.

دغـه وجـه ده چـې افغـان ولـس همیشــه دهندوســتان کــړو وړو تــه دشک په نظر ګوري او هغه دیرغلګـرو هېوادو ملګری اوسمبول بولي.

دسیاسي او پوځي چارو کارپوهانو پــه نظـر دهنـداو امریکــا تــرمنځ د ستراتیژک قرب لامـل دامریکـا او هنـد داسلام دښـمنۍ ګـډ دریځ دی؛ چـې دواړه یې یوبل تـه نیـږدې کـړي ، کلـه چې امریکا په افغانستان دیرغل پریکړه وکړه هند پرته له ځنډ دهغـه پریکـړې نه ملاتړاعلان کړ .

او له کله چې امریکا یـې عسـکر افغانستان ته ننوتي هند پـه افغانسـتان

کې دخپلو عزایمو دجال په بیا غزولو لاس پورې کړی ، امریکا دې لړ کې هند ته ټولې اسانتیاوې برابروي او هم یې موږال لوړوي څو په سیمه او منطقه کې هغه خپل کردار نور اضافه او پراخ کړي.

دامریکا او هند دستراتېژکې ملګرتیا بل هدف دچین مهارول دي ؛ځکه چین او هند دوه منطقوي سیالان دي؛ امریکا او چین بیا دوه نړیوال سیالان دي؛ امریکا هڅه کوي خپل نړیوال سیال (چین) دهغه په منطقوي سیال( هند ) مهار کړي څو دچین روانې پرمختګونوته د ننګوونو ټکان ورکړي .

په ورته توګه هند دګاونډي هېواد پاکستان سره له پیله خړې پړ ې اړیکې لري چې دهغو له امله څو ځله د دواړو ترمنځ خبره تر مخامخ جنګونو هم رسیدلې امریکا غواړي دهند نه دپاکستان په وړاندې دمنطقوي ګواښ په حیث کار واخلي.

په چین علاوه دپاکستان په اړه هم دامریکا عزایم د ډاډ وړ نه بریښي، دټرمپ وروستۍ ګوت څنډنې ښيي چې ورته دامریکا نیت ښه ندی؛ په دې لړ کې د هند او امریکا دوستانه دیپلوماسي په حرکت کې ښکاري ، ولې هند ددې فرصت نه په ګټه غواړي ځان په منطقه کې دامریکا یې ګټو ښه ساتونکی ثابت کړي او په دې چل او هنر سره زیارباسي دپاکستان پر ضد پروپاګند زیات کړي.

بل شی چې دامریکا او هند ترمنځ دستراتیژک قرب زریعهدی هغه څنګه امریکا دمسلمانانو په خلاف عملاً په جنګ لګیا ده، په عراق او افغانستان کې یې یرغلګر عسګر قابض دي، په ورته توګه هند هم په کشمیر کې داوړدې مودې راهیسې په مسلمانانو هغسې ـ دظلمونو ژرندې ګرزوي چې امریکا یې په افغانستان او عراق کې کوي اویا اوس تازه برما کې یې بودایانو شروع کړي.

که څه هم هند کې دمسلمانانو شمیر نیږدې درې سوه ملیونو ته رسي لیکن بیا هم هغوی داووه سوه ملیونه متعصبو هندوانود رحم و کرم لاندې ژوند تیروي ، په هغوی دهندو اکثریت لخوا کیدونکی ظلمونه هیڅکله پټ ندي، ، ځای په ځای دهندوانو له ډاره مسلمانان په ازادانه توګه اسلامي مراسم نشي ـ لمانځلی او ورځ ترورځې دهندوستان زمکه په مسلمانانو تنګېږي، دهندوستان په پارلمان کې څو په شمار مسلمانان غړیتوب لري چې په هغوی کې دیونیم پرته نور یوائې د نوم ترحده مسلمانان دي؛ دهندوستان اوسنی صدراعظم مودي دمسلمانانو هغه سرسخت دښمن دی د چاپه امر چې دګجرات ایالت په احمد آباد کې په زرهاوو مسلمانان وژل شوي .

بل پلو په نړیواله سطحه دامریکا اسلام دښمنې ښکاره ده ، فلسطین کې دامریکا کردار هر چاته معلوم دی چې اسرایل یې په پښو ودرولی او وربانـدې فلسطیني مسلمانان قتلوي، په یمین، شام، عراق او افغانستان اوبرما ټولو کې امریکا دمسلمانانو په قتلولو او نسل وژنه کې یا مخامخ ښکېل ده او یا پکې بالواسطه شریکه ده او هند ي حکومت چې داسرایل کوم ډول دوستانه اړیکي لري هغه هم پټ ندي ، په برما کې په مسلمانانو چې تازه ناورین راغلی ، مودي حکومت دبرما دوحشي حکومت ملاتړکوي، تردې چې په وروستیو کې مودي برما ته دسفر وروسته پریکړه کړې چې هندوستان کې میشت روهنګیا مهاجرین به له هنده و شړي او په دې لړ کې له مختلفو حیلو او بهانو څخه کار اخلي.

په ټوله کې نتیجه دا شوه چې دامریکا او هند ترمنځ داسلام دښمنۍ مشترک عنصر داسلام او مسلمانانو سره د ګډې دښمنۍ درلودو عنصر ـ دی، په دې وجه دواړه دیوبل متحدان او ملګري دي خو هند ته دافغانستان په اړه وریا داوو! چې افغانستان کې به یې دامریکا په ملاتړ روانې هڅې ډېره نتیجه ورنکړي، ښه داده چې دامریکا له ملګرتیا کولوکیني ، ځان دبیطرفه هېواد په حیث ثابت کړي کنه افغانستان کې به یې حشر هغه وي کوم چې د امریکا دقمست په پانه لیکل شوی پای ...



# د مقدساتو سپکاوی

غزنیوال

امریکایي الوتکو د کابل د قره باغ په ولسوالی کې د واده پر مراسمو تر بمباري وروسته د پروان ولایت په بګرام ولسوالی کې داسې تبلیغاتي پاڼې له الوتکو څخه غورځولې چې د مسلمانانو ترټولې مقدسې کلمې ته یې سخت سپکاوی کړی دی.

په یادو پاڼو کې چې په غیر معیاري پښتو ژبه څو ناسمې جملې لیکل شوې د زمري او سپي انځورونه ښکاري چې د سپي پر تصویر د توحید مبارکه کلمه لیکل شوې ده.

که څه هم چې اشغالګرو امریکایانو د خپل اشغال له پیله تر اوسه په لس ګونو ځله پر نورو جنایاتو سر بیره د افغان مسلمان ولس د اسلامي مقدساتو سپکاوي کړی او په دې سره یې په معنوي لحاظ د هغوی مشاعر او احساسات ور زخمي کړي ، خو کوم توهین یې چې د دې تبلیغاتي پاڼو په خپراوي کې کړی له شکه پرته چې نهایت شرموونکی او ډیردردوونکی دی.

د امریکایانو دا وحشیانه او د ټولو اخلاقي معیارونو منافي اقدام د طالبانو خلاف نه ؛ بلکې د ټول عالم اسلام په تیره د هغه مسلمان افغان ولس د عقیدي خلاف وحشیانه تیري دی چې دغه مقدسه کلمه د اسلام د پنځو اساسي ارکانو له جملې څخه لومړی اساسي رکن بولي او د ژوند په هره شیبه کې یې د هغې مبارک ورد په خوله جاري وي.

دا چې امریکایان له طالبانو سره عملا د مقابلې په ډګر کې قرار لري او غواړي د خپلې نوي جنګي ستراتیژۍ د عملي کولو لپاره داسې تبلیغات وکړي چې افغانان د طالبانو له حمایته لاس اخیستلو ته را وبولي ، هغوی کولای شوای په دې تبلیغ پاڼو کې یې د کلمې په ځای د کوم طالب انځور ترسیم کړی وای چې د مفهوم له لحاظه ښایي تر کلمي د طالب تصویر د دوي پیغام هم په ښه توګه رسولای وای ، خو امریکایانو په شعوري او عمدي ډول ځکه د طالب د تصویر په ځای د توحید کلیمه لیکلې تر څو په ښکاره توګه د اسلامي نړۍ د یونیم ملیارد مسلمانانو د عقیدې سپکاوی وکړي.

ښایي ځیني د امریکایي اشغال بې ضمیره مدافعین د امریکایانو د دي وحشیانه اقدام پړه هم پر طالبانو ور واچوي ، خو هغوی نور باید دا خبره درک کړي چې د امریکایانو دا نه توجیه کیدونکې هڅه په افغانستان کې د هغوی د شکست او اخلاقي فضیحت وروستۍ نښه ده ، دا مدافعین که هرڅومره د امریکایانو کړنې توجیه او په مقابل کې یې پرافغان مقاومینو بد ووایي ، دوی ترامریکایانو ډیر ناولي او د افغان مسلمان ولس خلاف د یرغلګرو په ټولو جنایاتو کې سهیم دي.

شوني ده چې افغان مسلمان ولس د امریکایانو د بمباریو، ولسي وژنو او نورو هرډول مشکلاتو په مقابل کې تحمل وکړای شي خو د مقدساتو د توهین په مقابل کې هغوی هر ډول تحمل له اسلام او ایمان څخه د تنازل مرادف بولي او په هیڅ صورت یې منلو ته نه دي تیار.

ګډ حکومت چې ځان د اسلامي افغانستان ممثل بولي او د هیواد د اساسي قانون دریمه ماده یې په صراحت سره دا حکم کوي چې:

))په افغانستان کې هېڅ داسې قانون نشيـ نافذیدلی چې د اسلام د سپېڅلي دین او په دې اساسي قانون کې د راغلو ارزښتونو، مخالف وي)) نو که ریښتیا هم خپل اساسي قانون ته ژمن وي باید د همدې مادې په رڼاکې خپل امریکایي دوستان و پوهوي چې افغانان د اسلامي ارشاداتو او خپل اساسي قانون له مخې هیڅکله د مقدساتو د توهین په مقابل کې بې تفاوته نشي پاتي کیدلای، او نه دغه ډول اسلام ضد اقدامات تر امریکایي حمایت لاندې حکومت ته په افغانستان کې د بقاء زمینه برابرولای شي.



# په برما کې ستر وحشت د څه لپاره؟

## او د نړۍ چوپتیا ولې؟

**شهیدزوی**

د قانون په ټولو کتابونو کې د بشر د حقوقو په اړه لیکل شوي چې د بشر د حقوقو نه د برخمن کېدو لپاره یواځې انسان کېدل کافي دي ؛ د رنګ نسل ، ژبې ، سیمې ؛ مذهب او ایډیالوجۍ سره ددې هیڅ تړاو نشته . هو ! د دوهم نړیوال جنګ نه پس اوبیا په ځانګړې ډول د ۲۰ مې پیړۍ په وروستیوکې د بشر د حقوقو په اړه ډېرې چغې پورته کړای شوې پدې اړه زخت زیات کانفرانسونه اوغونډې جوړې شوې؛ په نړیوالو رسنیو کې پرې له حده زیات بحثونه وشول؛ په زرونو کتابونه پرې ولیکل شول اونړیوالو هڅې وکړې چې تر ډېره دې لیکل شویو اصولوته ځان ژمن ښکاره کړي نوځکه دا د نړۍ د دولتونو لپاره ډېره مهمه موضوع ګرځول شویده اودنړۍ په کوم ګوډ کې که د بشر د حقوقونه دسرغړاوي کومه کوچنۍ پېښه هم رامنځته شي پرې ډېره لویه غوغا رامنځته کېږي اوکه په پېښه کې کوم مسلمان یادلویدیځ کوم مخالف دولت ککړوي نوبیاخو دنړۍ ټول مشران په یوه خوله دداسې عمل غندنه کوي ؛ عاملینوته سزا ورکول حتمي کېږي چې خبره پکې کله پر هېوادونوحملې کولواو ددولتونوترړنګولو هم رسېږي خو د۲۱ مې پېړۍ پدې مهذبه نړۍ کې مسلماني داسې ستر جرم دی چې دبشر دحقوقو دیوقانون نه هم دنړۍ مسلمانان استفاده نه شي کولای او بیا دبرما پر مسلمانانوباندې خودحقوقو ټولې درواځې بندې کړای شویدي بس یواځې دمرګ، ظلم او وحشت دروازې ددې مظلومو انسانانو لپاره خلاصې دي اوټوله نړۍ یې تماشه کوي .

په ټولې نړۍ کې یواځې همدوئ داسې انسانان دي چې په خپل هېواد کې ددې هېواد نفوس نه ګڼل کېږي او نه په نړۍ کې بل کوم هېواد دې ته تیار دی چې دوئ خپل نفوس ومني بلکې داسې ښکاري چې نړۍ ېبخي دې ته نده تیاره چې انسانان یې وګڼي نوځکه ددوئ پر ضد دبودایانو له لورې دټولوظلمونو او وحشتونو په اړه نړۍ چپه خوله وي ؛ که په زرونو وژل کېږي ، بې عفته کېږي یا په سونو زره بې کوره کېږي دنړۍ پرې پرواهم نه وي اونه یې داسې ګڼي لکه چې چرته دې دچا نوک زخمي شوی وي .

کابو ۳ اوونۍ وړاندې دبرما فوځ په اراکان ولایت کې دمسلمانانو په کلودهلیکوپترو نه پترولي بمونه راغورځول پیل کړل چې په یوځل دمسلمانانو ۲۵ کلي وسوځېدل اوترننه دالړۍ روانه ده ؛ ۴سوه زره مسلمانان اوس له خپلوکوروبې ځایه شویدي اودځان اوناموس ساتنې په موخه غرونواوځنګلونوکې شپې تېروي ؛ دبرما دولت دملګرو ملتونو اداري ته اجازه نه ورکوي چې دوئ ته خوراکي توکي او درمل ورسوي ؛ ددې مظلومو انسانانودوېرې اوخوف نه ډکې سترګې دنړیوالو په انتظار دي چې رابه شي اودوئ ته به ددې وحشیانو نه نجات ورکړي خو متأسفانه چې دیویشتمې پېړۍ ننۍ نړۍ چې ځان

دبشر ډېر خوا خوږي او ډېر مهذب بولي او په ځينو مواردو کې ديو فرد پر وړاندې رامنځته شوې دظلم په پېښې يې ستره غوغا جوړه کړی وي نن پدې ټول وحشت چوپه خوله ده اوداسې هيڅوک پکې نشته چې دنړۍ ددې ترټولو مظلومو انسانانو مدد وکړي .

مهمه داده چې په برماکې پر دې مظلوموسلمانانو دروان وحشت لپاره هيڅ پلمه هم وجود نه لري ؛ دولت ځان نړۍ ته سيکولر ښکاره کوي خو په حقيقت کې داپه ټوله معنی سل په سلوکې داسې يوبودايي دولت دی چې پدې هېواد کې ورته مسلمانان هيڅ دزغم وړ ندي نوځکه خومسلمانانو ته ددې هېواد تابعيت نه ورکوي ؛ ښه دپلان له مخې يې دمسلمانانو پسې راخستی ده او غواړي چې پدې هېوادکې دمسلمان په نوم هيڅوک پرنږدي؛ يايې ووژني اويايې دهېوادنه تېښتې ته اړکړي .

خطرناکه خبره داده چې دبودايي مذهبي مشرانواوبودايي ولس غوښتنه هم همدا ده نو دبودايي مذهبي مشرانو په حکم ولسي بودايان ؛ بودايي فوځيان او پوليس په ګډه دبې وسلې ، تش لاسو مسلمانانو پرسيمو يرغلونه کوي؛دنر،ښځې، ځوان،بوډا او کوچني دامتياز پرته هرمسلمان چې پرمخه ورځي وژني يې؛کلي محاصره کوي او ټول کلي ته په يوځای اور اچوي اوپکې راګېر شوي ټول مسلمانان ژوندي سوزوي؛ دکليونه دتېښتې په حال کې چې کوم خلک ژوندي نيول کېږي هغوئ باندې تېل پاشل کېږي او سوځول کېږي؛وحشي بودايان دمېندو دغېږو نه کوچنيان را اخلي ؛ سرونه ترې پرې کوي او اور ته يې وراچوي او پرمېرمنو دخپلو بچو ترمخه جنسي- تېري کوي او بيا په ډېرې بې رحمۍ په اجتماعي ډول مور اوبچيان ټول وژني.

دلته هغه ظلم روان دی چې په اړه يې هيڅ تصور نه شي کېدای ؛ لارې کوڅې او پټې، دلويانو،کوچنيانو او مېرمنو دجسدونو نه ډک دي ؛ هر لور ته سوځېدلي کلي او پکې دمسلمانانو لولپه شوي جسدونه دي، خو څوک يې ددفنولو نشته ؛نه کفن شته،نه جنازه شته؛ نه په اسلامي طريقې دفن او نه هم قبر.

دلته دوينو او اوښکو يو سمندر دی؛دمظلومو مسلمانانو چغې او آهونه تراسمانه رسېږي اوپرې ځمکه اواسمان ژاړي خو په نړۍ کې دامن اودبشر- دحقوقودساتنې ټېکداران امريکا،اروپايي اتحاد او دملګرو ملتونو اداره داهيڅ هم نه اوري اونه يې ويني او نه ددې مظلومو انسانانو پرضد دروان وحشت دودرولو لپاره دياډولو وړ اقدامات کوي.

داسې ښکاري لکه چې داهرڅه ددوئ په ګډه مشوره اوشريک پلان له مخې روان وي نوچې دملګرو ملتونو له لورې دخوراکي توکيو او دوا استول شوې لارئ دبرما فوځ ودرولي او دوړاندې تلو اجازه يې ور نکړه نو دې اداري يې په مقابل هيڅ غبرګون ښکاره نکړ ؛همدا راز دنيويارک ټايمز،ګارډين،انډي پنډنټ او بي بي سي په څېر معتبرې غربي رسنئ هم پخپله اعتراف کوي چې دآنګ سان سوچي په مشرۍ کې دبرما دولت يو جورنالست ته هم اجازه نه ورکوي چې اراکان ته ورشي او داصل حقايقو نه نړۍ خبره کړي.

که چرته دنړۍ په کوم اسلامي هېواد کې يواځې ديوې نامسلمانې کورنۍ پرضد دمسلمانانو له لورې دظلم کومه کوچنۍ پېښه شوې رامنځته شوی او بيا دحالاتو نه دنړۍ دخبرولو په موخه دورتلونکو جورنالستانو مخه ددولت له لورې نيول شوی وای دنړيوالو رسنيو اودامريکا ،غربي اتحاد،ناټواواروپايي اتحادبه څه عکس العمل وای؟

هرڅوک پوهېږي چې اقتصادي بنديزونه به وای؛دبانکي حسابونو کنګل کېدل به وای؛په ډېرو شديدو ټکو به غندنې وای؛دبشر- دحقوقو دنړيوالو ادارو له لورې به ددې هېواد پرضد دشديد عکس العمل ښکاره کولو غوښتنې وای او په نتيجه کې به دملګرو ملتونو دامنيت شوری له لورې پدې هېواد حمله وای .

خو په برما کې دوحشي بودايي ولس او بودايي فوځ له لورې دمسلمانانو پرضد ددې دومره ستر وحشت په مقابل هيڅ هم نشته،نه دبرما سره په نړۍ کې څوک سوداګريزې راکړې ورکړې بندوي؛نه وربانـدې اقتصادي بنديزونه لګول کېږي،نه ورسره ديپلوماتيکې اړيکې پرې کولی شي؛ نه دظالم دولت دظلم مخنيوی کېږي؛نه دخپل ولس په قتل عام کې دککړ دولت له منځه وړل اړين بلل کېږي او نه هم ناټو يا دملګرو ملتونو دامنيت شورى دداسې دولت پرضد يوکوچنی اقدام اړين بولي.

دبرما کمزوری دولت او ولس چې پـدې دومـره سپين سترګی دکمزورو مسلمانانوپر ضدوحشت ته دوام ورکړيـدی اودهيڅـا پـروا نـه سـاتي نولـه دې داجـوتېږي چـې ترشايې کفري نړۍ ولاړه ده .

هماغه کفري نړۍ چې دنړۍ په کوم ګوټ کې که دکوم مسلمان په لاس دشخصي۔ خصـومت يـا رواني تکليـف لـه املـه کومـه نـاوړه پېښـه رامنځته شي نو ټوله نړۍ يې په يوه خوله داسلامي تروريزم پېښه بولي او ټول په اتفاق دداسې پېښې عـاملينو تـه دسزا ورکولو غوښـتنه کوي خـو دلته چې بودايي مذهبي مشران خپلو عامو بـودايي پېروانـو تـه دمسلمانانو دقتل عام حکم کوي؛دا خپله مذهبي فريضه ګڼي او په نتيجه کې يې دفوځ او عـامو بودايانو دشريک پلان له مخې پدې هېواد کې دمسلمانانو دنسل ختمولو په موخه دمسلمانانوقتل عام کېږي؛ غونډ غونډ کلي يې سوځول کېږي ؛په زرونو مېرمنې بې عفته کېږي او په سونو زره انسانان دخپلو کورونو پرېښودوته اړايستل کېږي نو په نړۍ کې هيڅوک دې ته ندي تيار چې دې ته بودايي تروريزم ووايي او وحشي۔ بودايان بودايي تروريستان وګڼي.

داڅومره ستر منافقت او لويه بې انصافي ده ؟!

په برماکې دحاکم ګوند مشره نوبل مډال ګټونکې آنګ سان سوچي به دخپل هېواد نه دتبعيد په شپو ورځوکې په خپلې هرې مرکې اوهرې وينـاکې دبشر۔ دحقوقو دساتنې ؛ دظلم او وحشت دپای ته رسولو او مظلومانو ته دهغوئ دحقوقو دورکولو خبرې کولې خوهمدا سوچي چې واک ته ورسېده نوداټولې خبرې يې هېرې کړې ؛ دخپلوهم مذهبو بودايانو پدې ټول وحشت يې سترګې پټې کړيدي اوپه برماکې روان وحشت چې ټوله نړۍ يې شاهده ده سوچي ورنه انکار کوي اوپه ډېرې سپين سترګی وايي چې پدې اړه ناسم معلومات خپرېږي .

دنړيوالو رسنيو منافقت هم ټولې نړۍ وليد چې نه يواځې داچې دنړيوالو رسنيو په مقابل کې دبرما ددولت ناوړه سلوک نه غندي بلکې دمسلمانانو پر ضد يې دوحشت پردې هم هغسې نه پورته کوي څرنګه چې ښايي .

يوځې دامريکايي نه بلکې دټولوغربي رسنيوله لورې په امريکا کې دطوفانونو سحنې او ددولت له لورې دساتنې تدابېر په څومره اهتمام ښوول کېږي ؛څومره زيات وخت ورکول کېږي خو همدا رسنئ بيادبرما دې بشري ناورين ته هيڅ توجو نه کوي.

دمسلمانانو دمظلوميت دسحنو يوه سلنه هم نه ښکاره کوي او نه دبودايانو دوحشت عشرعشير نړيوالو ته رامخې ته کوي؛ نه پدې اړه ګردي مېزونه جوړوي؛نه دنړۍحاکمان دې ته هڅوي چې ددې ستر وحشت دودرولو لپاره جدي اقدامات وکړي او نه هم دنړۍ ولسونه دې ته هڅوي چې ددې وحشت پرضد اواز پورته کړي.

دبرما دمظلومو مسلمانانو پرضد دروان وحشت په اړه پراسلامي نړۍ دمسلطو حاکمانو چوپتيا بيا ترټولو زياته دردونکې او زورونکې ده يواځې دطيب اردګان ترکيه ده چې ددې مظلومو انسانانو په هکله يې غږ پورته کړيدی؛ د برما دمسلمانانو په دې حالت يې له سترګواوښکې لاړې ددې وحشت په مقابل کې يې سخته لهجه خپله کړه ؛ دايې دمسلمانانوقتل عام ګڼلی دی او ويلی يې دي چې کوم مسلمانان پدې وحشت چوپ پاتې دي هغوئ هم پدې جبرکې شريک دي .



دبرما دمسلمانانو سره دخواخوږۍ ښکاره کولو په موخه طيب اردګان خپله مېرمن اودباندنيو چارو وزير تربنګله ديش ورواستول او هورې يې په کمپونو کې دبرما نه دتازه راغلو مهاجرينو سره وکتل.

همدا ترکيه ده چې دملګرو ملتونو په ادارې کې يې هم په دې اړه غږ پورته کړی او هڅې يې کړيدي چې دنړيوالو پاملرنه دې لورته راواړوي او دا موضوع چې څرنګه ستره ده همداسې يې نړيوال ستره وګڼي.

دطيب اردګان ادارې چې په تېرو ۵ کلونوکې دبرمادمسلمانانو سره د ۷۰ مليونه ډالرو په ارزښت مرستې کړيدی اوس يې په بنګله ديش غږ کړيدی چې دبرما نه راغلي مسلمانان دې بېرته برماته نه شړي؛ په دوئ راتلونکي ټول مصارف به ترکيه ورکړي.

له طيب اردګان پرته داسلامي نړۍ بل يومشر هم ددې مظلومو مسلمانانو په حق کې څنګه چې لازمه وه هغسې غږ ندی پورته کړی

او نه يې ددې خورابدحالت نه ددې مظلومو مسمانانو دراويستلو مناسبې هڅې کړيدي؛اسلامي کانفرانس بيخي دشرم نه ډکه دچوپتيا روژه نيولې وه اوچې يې دا روژه ماته کړه نو په ډېر کمزوري اوبې اثره اواز يې ماته کړه ؛ نه يې کوم جدی غبرګون ښکاره کړ ؛ نه يې دبرما دوحشي دولت پرضد داسلامي نړۍ جدي غبرګون ښکاره کولو غوښتنه وکړه او نه يې هم څه پلان ورکړ .

سعودی هم يواځې غږ پورته کړ ددې ظلم دود رولو لپاره يې عملاً هيڅ ونکړل حال داچې پدې وخت کې يې دنړۍ په سياسي دګرکې ډېر څه دلاسه کېږي .

دسعودي په مشرۍ کې هغه عربي هېوادونه چې دکوچني تخلف له امله يې دقطر پرضد خورا سخت موقف خپل کړ اوس ددې دومره وحشت په مقابل کې يې څه وکړل ؟.

که په ټولو اسلامي هېوادونوکې دکلمې دخپلو دې مظلومو وروڼوپه حق کې مؤثر اواز پورته کړی شوی وای اوټولو مسلمانوحاکمانولکه څنګه چې پکار ده احتجاج کړی وای نو دملګرو ملتونوادارې اونړيوالې ټولنې به خامخا جدي اقدامات کړی وای خومتأسفانه چې ټولې اسلامي نړۍ لويديځ ته دعذر زارۍ لار خپله کړيده اوبس .

نوځکه عام مسلمانان دنړۍ دنامسلمانو ترڅنګ دمسلمانو واکمنانو نه هم سخت ناهيلي دي او يقين ته يې پريوتې ده چې په نړۍ کې ډېر سخت منافقت او لويه بې انصافي روانه ده او ددې حاکمانونه دځه تمه ناسم کاردی .

مسلمان ځوانان چې دنړۍ دا ستره بې انصافي او لوی منافقت ويني نويقين ته يې پريوځي چې دبشر دحقوقو،بشريت ته داحترام او دظالم نه دمظلومو خلکو دساتنې ټول اصول،قواعد او خبرې يواځې دنامسلمانو لپاره دي،مسلمانانو ته دنړۍ ستر طاقتونه نه يواځې دا چې دانسانانو په نظر نه ګوري بلکې دځمکې له مخه يې ختمول ضروري ګڼي چې ښه دپلان او پروګرام له مخې دبرما په څېر اقدامات کېږي نو ځکه مسلمان ځوانان ټوپک ته لاس کوي او دجهاد پرته په بل هيڅ شي کې خپل نجات نه مومي.

داسې ښکاري چې پرمسلمانانو دظلم او وحشت په مقابل کې دسيمې په قهرېدلو مسلمانانوکې يوبل قيام رامنځته کېدونکی دی چې په برکت به يې ظالمان دقهر دزوروړې څپېړې سره مخامخ اومظلوم مسلمانان به ددې دمظلوميت ددې ناوړه حالت نه راووځي.

نو اوس دملګرو ملتونو ادارې او دنړۍ سترو زبرځواکونو لپاره دفکر اوسوچ ځای دی چې دا بې انصافي او منافقت ختموي او که دداسې حالت انتظار کوي .

# بدرالفتاوی او صاحب د بدرالفتاوی

ليکنه: مولوي امان الله ثابت

د افغانستان اسلامي امارت په اوسني عصر کې يو داسې پياوړې او منظم قوت دی چې په افغانستان کې له امريکا او ناټو سره د جنګ په ډګر کې ټينګه او سخته مقابله کوي او د حق او باطل د معرکې يو واضح مثال وړاندې کوي، نن هم د امارت مشران د تحريک او امارت د مؤسس او لومړي اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله لار تعقيبوي.

حسرت او افسوس پر دې دی چې د اسلامي ملکونو سربراهانو او واکمنو د خپلو ذاتي مفاداتو له امله امريکا ته د غلامۍ سرونه ټيټ کړي دي، نو ځکه خو نن ټول مسلمه امت له مشکلاتو سره لاس او ګرېوان دی.

په هر حال د سيف او سنان په ډګر کې د اسلامي امارت دا يوه لويه او تاريخي جهادي کارنامه ده چې د اوسنۍ زمانې سپر شيطاني طاقت امريکا او متحدينو ته يې غاړه نه ده کېږه کړې او اوس دا دی د الله تعالی په خصوصي نصرت سره د اسلامي امارت مجاهدينو امريکا په افغانستان کې په ګونډو کړې ده.

او د قلم او قرطاس په ميدان کې د افغانستان د اسلامي امارت يوه ستره او تاريخي علمي کارنامه

«بدرالفتاوی في الفقه الحنفي» ده چې د افغانستان اسلامي امارت د مرکزي دارالافتاء د سابق رئيس مولانا مفتي نورمحمد (ثاقب) صاحب په زيار، عام منظر ته راغلې ده، دا وخت يې دوه ټوکه (جلدونه) چاپ شوي دي او پاتې درې جلدونه به يې عنقريب ان شاء الله تعالی له چاپه راووځي.

د «بدرالفتاوی في الفقه الحنفي» يو اهم خصوصيت دا دی چې دې ته د پښتو په دنيا کې د پښتو په فتاواوو کې د «د الفضل للمتقدم» وياړ حاصل دی او هغه داسې چې له دې څخه د مخه زما د معلوماتو مطابق په پښتو ژبه کې دوه فتاوا اګانې دي يوه «احمدشاهي فتاوی» ده او بله «فتاوی ودوديه» ده خو دا دواړه په دې معنا فتاوا اګانې دي چې د فقهي جزياتو دوه مجموعې دي او د پوښتنې او ځواب په شکل کې نه دي، اما «بدرالفتاوی» د فقهي مسايلو يوه لويه ټولګه ده چې د مستفتي د پوښتنې او د مفتي د ځواب په بڼه ده، نو د پښتو په دنيا کې په دې معنا سره د لومړنۍ فتاوی افتخار يوازې «بدرالفتاوی في الفقه الحنفي» ته حاصل دی.

د «بدرالفتاوی» يوه ښکلا او خوبي دا هم ده چې په مجموعي توګه هره فتوی د ديوبند د اسلافو د فتاواوو په طرز او معيار ليکل شوې ده يعنې د هرې فتوی لاندې عربي حوالې له عربي عباراتو سره راوړل شوي دي او د غه شان په حوالو کې د ديوبند د اکابرو د فتاواوو او تاليفاتو عبارتونه هم رانقل شوي دي.

د «بدرالفتاوی» د اهميت او افاديت په اړه پخپله د «بدرالفتاوی» صاحب او مؤلف مولانا مفتي نورمحمد (ثاقب) د دغې فتاوی په سريزه او مقدمه کې داسې ليکلي دي:

«په دغه فتاوی کې ډېر اهم او په زړه پورې معلومات او ډېر عمده، پُر مغز او ضروري مسائل موجود دي چې ښه په دقت او په تفصيل سره ليکل شوي دي او د معتبرو کتابونو څخه ګڼې حوالې پرې رانقل شوي دي، په دې کې قديمي او د جديد دور دواړه ډوله مسائل شامل دي او دا هغه مسائل دي چې د مسلمانانو ټولنې ورته تقريبا هر وخت ضرورت پېښېږي خصوصا زموږ په هېواد کې هغه وخت يعنې د مسائلو د صدور په وخت هم، دغو مسائلو ته ضرورت پېښ ؤ، او س هم پېښېږي او په اينده کې هم هر وخت ورته ضرورت پېښېږي او مشکل ور باندې حل کېږي.»

په ربښتيا چې په اوسنۍ زمانه کې جديد و آلاتو ډېرې فقهي پوښتنې راپيدا کړې دي، چې د قرآني آيتونو، نبوي احاديثو او اسلامي فقهي په رڼا کې د هغو حل کول د اهل علمو يوه اهمه فريضه ده، نو په دغه فتاوی کې د غسې پوښتنو ځوابونه موجود دي، د نمونې په توګه لاندېني فقهي سوالونه ځواب شوي دي:

الف: له مصنوعي غاښونو سره غسل څه حکم لري

ب: له راديو څخه د سجده تلاوت اورېدل څه حکم لري

ج : پر موټر او ټکټر زکوة شته او که نه

د : پـه روږه کـې پیچکـاری او سیروم لګول څه حکم لري

پـه «بـدر الفتاوی» کـې د ځینـو ظالمانه دودونو هم ښه تعاقب شوی دی، د بېلګې په توګه دا یوه پوښتنه او ځواب یې ملاحظه کړئ!

پوښتنه : یوه ښځه چې کونډه سي آیا د مېړه قریبان یې دې ته مجبور ولای سي چې د مېړه په قریبانو کې یو څوک په نکاح کړي او کنه؟

جواب : دغه ښځه چې کونډه شوې ده داینده لپاره د دې خپل رضائیت اعتبار لري که د میړه په اقرباؤ کې یې څوک خوښ ؤ او که یې بل څوک خوښ ؤ یا یې په بل قوم او قبیله کې څوک خوښ ؤ هغسې دې ورسره وشي او هلته دې په نکاح ورکول شي؛ نه د مېړه قریبـان دا حق لـري چې نکـاح تـه یـې مجبوره کړي او نه د ښځې خپل قریبان دا حق لري چې د دې بې رضاء یې یو ځای ورکړي هر ځای چې ورکول کېږي دا ښځه به په خوله اقرار کوي چې په دغه ځای زه خوشحاله یم یـوا ځې سکوت یې هم اعتبار نلري او کـه د دې خوښه او رضاء نه وي او یو قریب یې په نکـاح ورکـړي هغـه نکـاح باطلـه ده او هـیڅ صـحت او جـواز نلري، همـدا رنګـه د امیـر المؤمنین (کـان الله تعـالی لـه) فرمـان صادر شوی دی چې هېڅوک کونډه نکاح ته نشي مجبـورولای هـر څـوک چـې مخالفت کـوي باید فورا د امارت مسؤلینو تـه خبر ورکول شي او هغوی یې مخه ونیسي.

دصـاحب د «بـدر الفتاوی» یـو څـه لنډه پېژندنه ما فقیر پخپل کتاب (د مولانا شیر حسن تذکره) کې لیکلې ده البته دلته زه یو درې اقتباسونه را اخلم چې هغه د صاحب د «بـدر الفتاوی» پـر شخصـیت ښـه رڼـا اچوي:

لـومړی اقتبـاس لـه میاشتنۍ مجلې «الحـق» څخـه دی، نـو د جامعـه دار العلـوم حقانیه مهتمم او شیخ الحدیث مولانا سمیع الحق صاحب (مدظلهم) په میاشتنۍ مجله «الحق» (د ۱۴۳۴ هـ ق کال د ربیع الثاني په شماره کې لیکلي دي:

«مولانـا نورمحمـد ثاقـب صـاحب د دار العلـوم حقانیـه قابـل فخـر فرزنـد او لـه جیـــدو فارغـــانو څخـــه دی، دخـــدا داد صلاحیتونو په بنیاد یې د امارت اسلامیه افغانستان چیف جسټس (قاضي القضاة) منصب درلـود، د علامـه اقبـال مرحـوم زوی جنـاب جسـټس جاویـد اقبـال د طالبـانو د اسلامی حکومت په زمانه کې د افغانستان په دوره تللی ؤ، د مولانا ثاقب صاحب سره یې ملاقاتونـه وشول او د هغوی لـه (نظام عدل) څخه دومره متاثره شوی ؤ چې د کابل څخه راسًا زما کورته راغی او بیا زما په خواهش د دار العلوم په «ایوان شریعت» کې یې خطاب وکړ او د مولانا ثاقب صاحب زبردسته تذکره او یادونه یې وکړه.»

دویـــم اقتبـــاس د «القاســم» لـــه میاشتنۍ مجلې څخه دی، نو د ګڼو کتابونو مصـنف، د صحیح مسـلم شـارح او د جامعـه ابـوهریرة خالقآبـاد نوښـار مهتمم حضـرت مولانـا عبـد القیوم حقـاني صـاحب (دامـت برکاتهم) پخپله میاشتنۍ رساله «القاسم» (جلد ۲۱ شماره ۷) کې لیکي:

«اوســنی عصــر د سپیلایزیشـــن او تخصص عصر دی، څوک د سیف او سنان شوقي دی خو د کتاب او قرطاس په میدان کې غبي دی، څوک د قیل او قال له نزاکتونو او بـاریکیو څخـه خبـردار دی خـو د عمـل د میدان له اسرارو او رموزو څخه نا اشنا دی لېکن یو څو چیده او منتخب اشخاص داسې هم شته چې هر رُخ او جهت والا دي او جهت ساز هم دي، له دغو جامع الاوصاف هستیو څخـه محقـق عـالم، بـاخبره مفتـي، باروـلـه مجاهـد، هـر زړه تــه محبــوب مــدرس او دافغانستان د طالبانو د دور قاضي القضاة مولانا مفتي نورمحمد (ثاقب) هم دی... »

دریـم اقتبـاس د «بـدر الفتاوی» لـه سریزې څخه دی او په دې کې د هغه چا وینا ده چا چې د امریکا پـه سترګو کـې سترګې ورکړې او د شجاعت او بهادرۍ په لاره کې یې د خپلې واکمنۍ او سلطنت د سقوط څه پروا ونه کړه او بیا چې کله د وفات خبر یې خپرېږي، نو د افغانستان په ولس کې یې د محبوبیت انـدازه داسـې څرګنـدېږي چـې د مفتوحه ساحو سربېره آن په کابل او تر اشغال لاندې په نورو ولایتونـو کې یې فاتحه او دعـا اخیسـتل کېـږي، خـو د امریکـا غـلام افغـان حکومـت د خپـل بـادار پـه اشـاره وربانـدې بندیز لګوي، په هر حال صاحب د «بـدر الفتاوی» د مقـدمې پـه ۸ مـخ کـې لیکي:

«محترم امیر المؤمنین (ملا محمد عمر مجاهد رحمـه الله)... د (۱۴۱۷هـ ق) کال د رجب المرجب د میاشتې په (۱۰) نېټه په یوه موقع بنده نورمحمد ثاقب ته ویلي وو : زه چې چېرته یم هلته به دار الافتاء یعنې ته هم یې ! »

الحمد لله د «بدر الفتاوی» په علمي ټولنـه کـې ډېـر ښـه استقبال شـوی دی، الله تعـالی دې د مولانـا مفتي نورمحمد ثاقب صاحب او د دوی د ملګرو دغه سعي او زیار قبول او منظور کړي. آمین ثم آمین




# دنړۍ مسلمانان باید د برما
## دمظلومو مسلمانانو انتقام واخلي

لیکوال :مفتی محمدگل سعید

له کومې زمانې چې مسلمانانودالله تعالی عظیم حکم (جهاد) ته شاکړې ده،اودجهاد،اسلام اواسلامي ارزښتونو دفاع یی پریښې ده،نوله هماغه وخته داسلام مقدس دین په تنزل روان دی،اومسلمانان دیوملت په حیث دتحقیر،تذلیل اومحکومیت کندوته دغورځیدوپه حالت کې دي،تردې چې مسلمانان دغلامۍ اوذلت له ژوندڅخه تردې حده پورې عادي شول ،چې دخپل خلاصون اوخپل عزت اوخپلواکۍ دترلاسه کولوپه هکله هیڅ کومه چاره ورته په نظرنه ورځي،ددښمن له تبلیغاتواودهغوی دبډایتوب اودمادي وسائلودډیرښت نه دومره اندازه متاثره شوي دي چې له کافرانو سره مقابله ورته ناشونې بریښي،دمسلمانانوله دغوبدو اوترخو عواقبو سره د مخکیدلو یولامل همداده چې داسلام اومسلمانانوپه ضددغلیم دنوې ټیکنالوژي مقابله ډیره اغیزمنه ثابته شوه ،هغه داسې چې کافرانو ترټولودمخه داسلامي هیوادونو په چارواکو او اداره باندې خواري وکړه ترڅوداسې اشخاص بایدواکمن اوپه مدارسره دادارې په ترکیب کې ځای په ځای کړي چې هغوی داسلامي ارزښتونواودمسلمان ملت په نسبت خپل سلطنت ،بقااوتعیش ته ترجیح ورکوي اوتل لپاره له دښمن سره دسازش اودهغوی په مقابل کې دمسامحې لارغوره کوي ،هغوی ته وفاداراودهغوی دخوښې مطابق چلندڅان لپاره خیراوخپله نیکمرغیګڼي ،مګر حقیقت دادی چې دمسلمانانو دموجوده دور دټولو مشکلاتو او پریشانیودحل یقیني اورښتینې یوازینۍ لارجهاددی. داسلام په شروع کې دمظلومو اوبې سروسامانه مسلمانانوټول مشکلات په جهاد او دظالمانواوبې رحمه انسانانوسره دمقابلې په نتیجه کې حل شول اوهغه مظلوم مسلمانان دایماني قوت په اسلحه په دې وتوانیدل چې دجبرو استبداددطوفانونومخه ونیسي اوداستکبار او استعمارتاج اوتخت په بل مخ واړوي اودځمکې خلافت درب العالمین صالحوبندګانو ته حواله کړي .الله تعالی داسلام مقدس دین دنیاته دمغلوبه کیدولپاره نه دی رالیږلی ،بلکه ددنیاپه ټولوادیانوباندې دغالب کیدلولپاره یی رالیږلی دی.اسلام دعزت اوعظمت والادین دی اوڅوک چې دادین قبول کړي اومسلمان شي نودهغه عزت اوعظمت نورهم زیاتیږي.په یو روایت کې راغلي دي چې دمسلمان عزت دالله تعالی په نزددکعبې له عزت نه زیات دی، په همدې خاطرنبی کریم صلی الله علیه وسلم دیو یو مسلمان لپاره خپله اودخپلوصحابه کراموزندګي په خطرکې واچوله اوترهغه وخته پورې یی دارام ځاه وانه خیسته ترڅویی چې په یو یو مسلمان باندې دکافرانو لخوا دشویوظلمونو بدله له کافرانوڅخه واخیستله.

د حدیبیدغزاپه موقع باندې یوازې دحضرت عثمان رضی الله عنه دحفاظت لپاره له څوارلس سوه صحابه کرامونه

په مرګ بیعت واخستل شواودوينې تراخري ځاځکي پورې يې دجنګ قصد وکړ ،ځکه چې نبی کريم صلی هالله علیه وسلم ته معلومه وه چې ديومسلمان څومره قدراوقيمت دی؟اونبی علیه السلام ته علم ؤچې که چيرې ديومسلمان وينه هيره کړای شي ياديومسلمان حفاظت ته اهميت ورنه کړای شي نوبيابه هيڅ يومسلمان محفوظ پاتې نه شي اوکافربه پرې هروخت تيرى کوي.

قاضی ابوبکربن عربی رحمه الله ليکلي دي، چې دمسلمانانويوبادشاه کفاروسره معاهده کړې وه چې ديوبل کسان به قيديان نه جوړوو،په هغو ورځوکې يومسلمان دکافرانوملک ته لاړنوديوه کافرله کورنه يوې مسلمانې ښځې هغه ته غږکړاوورته ويې ويل:چې خپل حاکم ته ووايه چې زه کافرانوګيره کړې يم ،اوله دوی سره بندي يم ،داسې چې کله بيرته ستون شواوله مسلمان حاکم سره يې خبرې وشوې نواخره کې يې ورته دهغې ښځې تذکره وکړه ،ده لاخپله خبره پوره کړې نه وه چې حاکم ولاړشواوسمدلاسه يې لښکرته دروانيدلوحکم وکړ،لنډه داچې په هغې علاقه يې قبضه وکړه اوهغه مسلمانه ښځه يې دکافرانوله لاس نه ازاده کړه.

علامه قرطبی ليکلي دي ،چې داندلس په حکمرانانوکې دمنصوربن ابی عامرپه څيرهيڅوک نه دی تيرشوی،هغه دپنځوسونه زيات جنګونه وکړل اودهغه په جنګونوکې له ټولونه مشهورجنګ هغه دی چې مسلمانان ددووغرونوترمينځ په داسې تنګ ځای باندې تيرشول چې هلته په يوه وخت کې يوازې يونفرپه آس سپورتيريدلی شوی،دې جنګ ته روميانوبې شميره عسکرراوستل اودمسلمانانودتيريدلولاره يې بنده کړه اوغوښتل يې چې دمنصورمخه ونيسي ، دمسلمانانو حاکم منصوربن ابی عامرته چې کله دامعلومات وسونوهغه دالحرب خدعة په اساس يومعقول عمل وکړهغه داچې خپلوکسانوته يې امروکړچې بايدماته دلته خيمه ودروی اودلته دميشته کيدولپاره راته يوښکلی محل جوړکړی،هماغه ؤچې يې د محل نقشه ورته جوړه کړه ،نومورې خپلوګورنرانوته خطونه واستول اوپه کې يې ورته وليکل چې مخکينيو حاکمانوداځای له نظرنه غورځولی ؤ،البته ماله استخارې کولونه وروسته په دې ځای کې داوسيدلو فيصله کړې ده،نوزه غواړم چې دلته يوښار جوړکړم اودلته ميشت شو.روميانوچې کله دامنظر وليد نو دصلحې لپاره راغلل او دمسلمانانو حاکم ته يې منت اوزاری شروع کړې ،حاکم ورته وويل :زه به له تاسې سره هغه وخت صلح وکړم چې کله تاسې دخپل بادشاه لورماته په نکاح راکړی،روميانوورته وويل:موږدداسې ذلت تصورهم نشوکولای ،له دې سره سم روميانو يولوی لښکرتيارکړاودجنګ تصميم يې ونيوه،په دې وخت کې له منصورسره شل زره شهسوارارن ؤ،لنډه داچې ددواړولښکرومينځ کې سخته جګړه وشوه ،اومسلمانانوشکست وخوړ،له منصورسره يې خپل زوی ميرمنشياويوڅوتنه مجاهدين پاتې شول،په دې وخت کې منصور حکم وکړ چې زماخيمه په يولوړځای باندې ولګوي ،مجاهدينودخپل حاکم خيمه په لوړځای ولګوله ،مسلمانانوچې کله داميرخيمه وليدله نوټول بيرته راټول شول اوداسې مضبوطه مقابله يې وکړه چې په پای کې يې روميانوته عبرتناک شکست ورکړ، له شميره زيات کسان يې ترينه قتل کړل اويوشمير يې ترينه ژوندي ونيول ،په دې وخت کې روميانو بيا دصلحې درخواست وکړ،دمسلمانانو حاکم منصوربن ابی عامر خپل مخکينی شرط ورته وړاندې کړاوورسره يې دزيات مال اودولت مطالبه هم وکړه ،روميان پرې راضی شول اودپادشاه لوريې له زيات مال سره منصورته وسپارله،دپادشاه دلور رخصت کوونکو معززوروميانو هغې ته وويل: چې اوس ته دخپل قوم دکاميابی لپاره څه وکړه ،نوهغې ځواب ورکړ،چې عزت دښځوپه بدن سره نه،بلکه دسړيوپه نيزوسره حاصليږي،ويل کيږي چې کله منصور بيرته خپل ښارته راستون شو،نويوې ښځې ورته وويل:چې تاسې خوشالي کوی اوزه ژاړم ځکه چې زمازوی خودروميانوسره بندي

دی،منصورچې کله داخبره واوریده نوسمدلاسه یی لښکرته دیرته تللوحکم وکړ،هماغه ؤچې کله بیرته خپل ښارته راستون شو نودهغې ښځې زوی هم ورسره ؤ.

امام عبدالغفاربن نوح القوصی لیکلي دي ،چې دمسلمانانوخلیفه معتصم بالله ته خبرراغی چې یورومي افسردعموریه نه یوې قیدي شوې مسلماني ښځې ته څپیړه ورکړه، نوهغې ښځې په زوره چغه کړه اوویی ویل چې:وامعتصماه!ددې زنانه له دې فریادسره سم رومي افسر ورته دپیغورپه طوروویل:چې معتصم به درته په برگ اس باندې سپوررا شي،اوتابه راځخه خلاصه کړي . داخبره چې کله معتصم ته ورسیده نوهغه دبرگواسونوپه تکل کې هرلورته خلک ولیږل ،تردې پورې چې دبرگ رنگ اتلس زره اسونه یی راټول کړل،ځینې وایی چې اتیازره اسونه یی راټول کړل،اوبیایی په ډیره میرانه سره په هغوی حمله وکړه اوهغه ټوله سیمه یی ونیوله،دمسلمانانوخلیفه معتصم بالله په اسلامي غیرت کې راغی اوحمیت دیني پرې غالبه شونویی په هغه ښارکې زیات شمیرکافران بندیان اوقتل کړل اود هغوی ښارونه یی وسوځول ،بیا یی هغه زنانه اوهغه پوځي افسردواړه راوغوښتل اوهغه افسرته یی وویل:(په داسې حال کې چې دی په برگ آس باندې سپورؤ) زه په برگ آس باندې سپوراغلی یم.

دتاریخ په کتابونوکې ذکرشویدي چې سلیمان بن عبدالملک یوازې دیوې زنانه دازادولوليپاره یولاکه اوشل زره دوچې لښکراویوزرسمندري لښکرلیږلی ؤ.ترڅویی هغه زنانه له کافرانونه ازاده کړه.

دیادونې وړدی چې له څه مودې راهیسې په برماکې دبودایانولخواظلم اوتشددروان دی ،اوهیڅوک ددې ظلم مخنیوی نه کوي، دبشردحقوقو مدعیان دبشریت په تقاضاباندې هم هیڅ نه وایی،په کارخوداوه چې ټولو اسلامي ملکونو باید دبدایانو دمظالموپه ضد مبارزې کړې وای نودابه دنړۍ دټولو کافرانو لپاره دعبرت درس ؤ،لیکن له دی امله داکارناشونی دی چې په مسلمانو حاکمانو کې اسلامي غیرت اوحمیت له سره نشته اونه په کې داسلامي جهادجوش اوجذبه موجوده ده ،هریوتربل هرڅه زیات دخپل اقتدارتحفظ ته زیاته ترجیح ورکوي ،ددغې فتنې،فساد،ظلم،بربریت اووحشت دطوفان په مقابل کې دمسلمان ملت راوښیدل په کاردي ترڅوچې له بودایانونه دخپلو مسلمانانو ورونړوانتقام واخلي.

حضرت جابر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل،چې دادین به همیشه قائم وي څکه چې دمسلمانانویوه ډله به ددې دین حفاظت لپاره ترقیامته جنگیږي .یعنې دځمکې مخ به له جهادڅخه نه خالي کیږي ددنیاپه یوه گوټ کې به خامخاجهادروان وي.ددې ډلې په وجه به دین قایم وي .ځینوعالمانوویلي دي چې داډله به دشام په ځمکه کې وي،ځینو نوروعالمانو ویلي دي چې په مغربي ملکونوکې یوه ډله مرادده،خوصحیح قول دادی چې پرته له تعین دځای اودزمانې نه،بلکه هره یوه برخه کې دمجاهدینوکومه ډله ددې حدیث مصداق کیدلای شي،الحمدلله نن په دنیاکې مسلمانانوپه مختلفو ځایونوکې دجهادبیرغ اوچت کړی دی ،په افغانستان ،کشمیر، تاجکستان ،فلسطین، بوسنیا، اوبرما کې مجاهدین په جهادبوخت دي، که کوم مسلمان په دې جهادونوکې په جاني یامالي طورسره برخه نه شي اخیستلی نوداپرې فرض دی چې نظریاتي اوجذباتي طورباندې له هغومجاهدینوسره همدردي وکړي ،له مظلومومسلمانانو سره په غم اودردکې شریک شي ،اوهغوی پخپلودعاگانوکې یادکړي اودهغوی لپاره دالله تعالی نه دکافرانو دظلمونو اووحشتونونه دنجات سوالونه وکړي.په یوحدیث شریف کې راغلي دي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل:چې څوک دمسلمانانو دکارونواهتمام نه کوي نوهغه څمونږ څخه نه دی .دلغت کتابونولیکلي دي چې اهتمام یوجامع لفظ دی دمسلمانانودحال خبراخیستل، په غم

اودردکې ورسره دهمـدردۍ اظهـارکول ،لـه هغـوی سره کومـک کـول ، دهغـوی لـه حــال څخــه ځــان خــبرول اوځــومره چــې کیــدای شي ددوی همکـاري کـول ترینـه مطلـب دي،اوداتـول کارونـه ددې لفـظ پـه مفهـوم کـې داخــل دي یعنــې دټــولې دنیادمسلمانانوپه احوالو کې دلچســپي ضروري ده اوددې څخـه بـې پروایـی کـول لـوی هلاکت دی.نن ورځ موږ وینـو چــې دبرماپــه مظلومــو مسـلمانانو دبودایـانو لخـوا څومره زیات بربریت، وحشت ،ظلــم اوســتم روان دی؟خومتاسـفانه چـې دنړۍ مسلمانانو دهغـوی لـه حال نه بې خبره پاتې دي او نه یې لـه هغـوی سره دهمـدردۍ اظهار و کړ.

والی المشتکی من سوء حالهم.

* * *

# دجومات غل، کیسه!

کله به چې پاچا یواځې شوو؛ نو د خپلې پیغلې لور لپاره به یې د یو د ښایسته ځوان پـه اړه سوچ کاوه چې، خپله لور ورته واده کړي.

یـوه شپه پـه همـدې سـوچ کـې ؤ، نیمـه شـپه یـې وزیـر راوغوښـت او ورتـه یـې وویـل:

– ښار ته ووځه، که دې داسې ځوان پیدا کړ چې په دې نیمه شپه له خوب څخه اوچت شوی وي او د خدای حضور ته په لمانځه ولاړ وي، دلته یې راوله.

په همدې شپه غل هم د غلا په نیت راوتلی ؤ، گوري چې د جومات دروازه قلف ده؛ نـو د کوم قیمتي شي په لټه جومات ته په دېوال ورواوښته.

غل په جومات کې لاس وهل پیل کړل، پردې او کړکۍ یې یوه بله خوا کولې چې د دروازې د ځنځیر شرنگ یې تر غوږ شو.

غل وارخطاء شو او حیران ودرېده، هېڅ چاره نه وه، ژر یې په زړه کې یو څه تېر شول.

وزیر له عسکرو سره جومات ته ورننوت، گوري چې په جومات کې د بندو دروازو تر شا یـو تن الله جَلَّجَلَالُهُ ته په عبادت او عاجزۍ ولاړ دی.

وزیر خپلو ملگرو ته مخ کړ، ورو یې وویل؛

-لـه لمانځـه سره د ډېـرې مینـې لـه املـه، ښـایي پـر دېـوال جومـات تـه اوښـتی وي! غل له ډېرې وېرې مسلسل نیتونه تړي او سلام گرځوي، چې دوه رکعته یې خلاص شي، بیا دستي پورته شي، نیت وتړي.

لمونځونـه یـې بېخـي ډېـر شـول، وزیـر نـور سـتړی شـو، عسـکرو تـه یـې وویـل:

-ځنگه چې یې سلام وگرځوه، سمدستي یې راپورته کړئ او د نور لمانځه اجازه مه ورکوئ.

همداسې یې وکړل، ځوان یې په نیمه شپه د پاچا دربار ته ورسوه.

وزیر د ځوان د لمانځه، ټول د سترگو لیدلی حال پاچا ته بیان کړ.

پاچا چې د وزیر خبرې واورېدې، بې دریغه یې تر ځوان غېږ تاوه کړه او پـه خنـدا خنـدا یـې داسې وویل:

-ښایي ته هماغه څوک یې چې زه یې له مودو مودو په اړه سوچونه کوم، ښایي زما د هماغـه خوبونو تعبیر ته یې... زه په تا غونډې ایماندار ځوان پسې گرځېدم چې، خپله گرانه لور ورتـه پـه نکاح کړم او زما تر مړینې وروسته پر تخت پاتې شي!

ځوان چوپ ولاړ ؤ، څه چې یې اورېدل، باور یې نه کېده.

سر یې له خجالته ځوړند کړ، له ځانه وشرمېده، د وجـدان پـر صحراء یـې یـواځې دا چیغـه اورېده:

ربه! زه دې په هغه لمانځه پاچا او د ښځې خاوند کړم چې، د خلکو له وېرې پرې ولاړ وم؛ نو په هغه لمانځه به کوم مقام ورکوې چې یواځې ستا له ډاره کېږي!؟

# د منځنۍ آسیا حکام

## له اسلام سره له دښمنۍ لاس نه اخلي!

عمر فارسی

د تاجکستان ولسمشر امام علي رحمان د ۲۰۱۷م د جولای پر ۱۱مه په دوشنبې ښار کې له عمومي غړو سره په دې اړه لیدنه وکړه، چې حجاب د تاجک مېرمنو لپاره یو پردی فرهنګ دی او له تاجک مېرمنو یې وغوښتل، چې اسلامي حجاب لرې کړي. ده زیاته کړه: «کم شمېر ښځې او نجونې په زړه کې دینداري نه ویني، خو په ظاهر کې د تورو جامو په اغوستلو سره زموږ فرهنګ او ارزښتونه تر پښو لاندې کوي؛ خو هېر کړي یې دي، چې مسلماني په جامو، ستر، حجاب او بریره کې نه، بلکې په زړه کې ده!» همدارنګه رحمان له چارواکو او امنیتي ځواکونو وغوښتل، چې پر هغو کسانو چې دیني ارزښتونو ته ژمن دي، فشار راوړئ. ده وویل: «په دې اړه د دولت سیمه ییزې اجرایي ادارې او نور مسؤول ارګانونه باید د منفي تمایلاتو له خپرېدو څخه د مخنیوي لپاره ځانګړي اقدامات وکړي«.

په تاجکستان کې د امام علي رژیم تر ننه پورې هغه کسان، چې خپل دین ته ژمن دي، تر کنټرول لاندې راوستي. د مثال په ډول: د اسلام پر وړاندې د رحمان له مغرضانه وینا مخکې، د هېواد په شمال کې ۲۱ ډلې، چې د امنیتي ځواکونو په ګډون د دولت د بېلابېلو ارګانونو له استازو څخه جوړه شوې وه، فعالیت کاوه؛ د دوی ماموریت د هغه فکر خپرول وو، چې ویل یې تاجکې مېرمنې د حجاب له اغوستلو بده وړي. باید وویل شي، چې په منځنۍ آسیا کې رحمان یوازنی حاکم دی، چې د اسلام پر وړاندې په ښکاره دښمني کوي او له وېرې او هر ډول اندېښنې پرته پر اسلامي ارزښتونو حمله کوي.

څه مهال وړاندې د قرغیزستان ولسمشر الماس بیک، چې په بشپړه توګه له کرملین سره تړلی دی، دوه ځله یې د اسلام پر وړاندې د دښمنۍ ویناوې وکړې، چې لومړی ځل یې د روان کال د جولای پر ۱۲مه وویل: « مطاله پر لمانځه له بوختېدو څخه غوره ده.» او دویم ځل یې د اسلام پر وړاندې دریځ نیولو ته د روان کال د جولای پر ۲۴مه دوام ورکړ او ویې ویل: « په قرآن کې سورت دی، چې له الکولو څخه په لږه اندازه استفاده روا ده او ګټور دي، خو د جوماتونو امامان یې له ویلو ډډه کوي«.

همدا رنګه په دې اړه د ازبکستان ولسمشر میرزایوف هم له خپلو ملګرو وروسته پاتې نه دی. ده په دې وروستیو کې له ازبک علماوو سره په یوه ویډیویي کنفرانس کې، څو ودونه کول محکوم کړل او هغوی ته یې وویل: «محترمو علماوو! کله چې تاسو د دویمې نکاح خطبه د سرشمېرنې د ثبت د اسنادو په پام کې نیولو پرته وایئ، آیا تر اوسه مو درک کړې، چې په ټولنه کې مو څه ستونزې او بدبختۍ را منځته کړې دي؟» میرزایوف څرګنده کړه، چې




زیاتره پېښې د څو ودونو کولو پایله ده. ده هغه امامان وګواښل، چې د دویمې ښځې لپاره د نکاح خطبه وایي او ویې ویل: «دوی باید خپل مسؤولیتونه د قانون په رڼا کې سرته ورسوي. موږ د دا ډول ناوړه اقداماتو د مخنیوي لپاره د لایحې جوړولو په حال کې یو، هر ملا چې د واده د شهادت لیک له ثبت پرته د نکاح خطبه ووايي، جزايي به شي«.

له دې ورانـدې د قزاقستان ولسمشر نور سلطان نظربایف د روان کال د اپرېل پر ۹مه په استانه کې د قزاقستان د مسلمانانو د معنوي ادارې له مشرانو سره په لیدنه کې اعلان وکړ، چې ږیره او حجاب د قزاقستان د خلکو له رواجونو سره جوړښت نه لري او امر یې وکړ، چې مخنیوی یې دې د تقنیني قواوو په واسطه وشي. ده زیاته کړه: «زموږ ځوانان د ناپوهۍ په پایله کې ږیره پرېږدي. د هغو قزاقي نجونو شمېر، چې په پوره توګه ځانونه په تورو جامو کې پټوي، د زیاتوالي په حال کې دی؛ چې دا خپله زموږ د خلکو له رواجونو سره په ټکر کې دی، چې د هغو مخنیوی باید د تقنیني قواوو په واسطه وشي. هغه وویل: د قزاقستان خلک باید تورې جامې د ماتم پر مهال واغوندي«.

همدارنګه په ترکمنستان کې هم د مسلمانانو د ځورولو په تړاو ورته حالت دی. د روان کال د اپرېل په میاشت کې د سردار ښار په نظامي واحد کې ځانګړو ترکمن خدمتونو یوه څېړنه پیل کړه، چې ښیي د عسکرو په ګډون یې له ۷۰ زیات کسان بندیان شوي دي. حقیقت داسې و، چې افسرانو د شپې مهال نوي مامورین سره راټول کړل او قوماندان یې د اسلام په اړه خبرې ورته کولې، چې په پایله کې افسران د اسلامي افکارو په خپرولو تورن شول. د دوی په اړه بېلابېلې جنايي دوسیې ثبت شوې، چې له هغې ډلې یې د اساسي قانون تر پښو لاندې کول او له دولتي دندو ناوړه استفاده ده. د ترکمنستان د کرونیکل د راپور پر اساس، د څېړنو او محکمې پایلې ته په کتو د یوه فرمان له مخې ۱۲ تنه لوړپوړي او ټیټ پوړي عسکر د افسرانو په استازیتوب له (۱۰ –۲۰) کاله په بند محکوم شول. له همدې امله هر کال د منځنۍ آسیا ظالمان د اسلام او اسلامي ارزښتونو پر وړاندې خپله دښمني بربنډوي او دوی په دې ګومان دي، څه چې کوي د ټولنې د آرامۍ لپاره دي.

په داسې حال کې چې د دوی ټولې هڅې پر اوبو د تصویر په څېر دي، ځکه د دې سیمې خلکو مخکې د پخواني شوروي د اشغال پر مهال د اسلام لپاره زیات فشارونه لیدلي دي. سره له دې چې کمونستان هېڅکله په دې ونه توانېدل، چې د مسلمانانو له زړونو څخه اسلام وباسي او که الله سبحانه وتعالی وغواړي اوسني ظالمان به په همدغه ځای له منځه یوسي، لکه څنګه یې چې کمونستان له منځه یووړل.

# د مفکــر اراده!

/قاضي نجيب الله جامع

تـاريخ د سـترو مېړونـو لـه ارادو څخه سرچينه اخلي، په هرځای کې چې بشپړ ايمان وي، نـو هلتـه بـه پيـاوړې اراده هم شتون ولري، بې ارادې انسان هغه چا ته ورته دي، چې پـه هـېڅ شي ايمان نه لري.

لـه ۲۰۱۴ کـال څخـه وروسـته د امريکايانو د وتلو ژمنه هغه څه وه چې د افغان ولس ملي او دينـي احساسـات يـې د بهرنيـانو د کرغيړنـو او نـاولې خرمسـتيو پـه وړانـدې راکـابوه کـولی شوی، د مخالفينو جگړه ايز مشروعيت يې ننگولی شوی او په ټوله کې دا د يـو نيـک گـام پـه توگـه د افغـانی ورک ډيالوک چې پـه لويـو مسـايلو کـې پـه ځـانگړې ډول چيرتــه چــې د ښـې حکومـت والـه پـه برخـه کـې جـدی ستونزی وجود لـری د يـوی سرتـاسری اجماع په رامنځته کولو سره ډاډمـن او تل پـاتی ټيکـاو پـه لـور د جگـړه ځپلو ټولنو د بيا ځان بساينې پـه لار کـې وړ حرکت وه.

ولې د مفکر له لوری وروسته لـه هغه چې د خلگو د ارادی په ستونی يې منگولې خښـې کړلـی او خپـل اساسي قانون يې واک ته د رسېدو لـه پـاره تـر پښو لاندی کړل، په څه کـم ۲۴ ساعته کـې دننـه د گـډ حکومـت د لـومړنۍ لاسته راوړني په توگه لـه بهرنيـانو سره د امنيتـی کرغيـړن او نـاولی هـوکړه ليـک لاسـليکولو وښـوده چـې د دوی مشران څومره بی ارادی، په نورو پوری تړلی او د افغان ولـس لـه ارزښـتمندو سرښندنو څخه بی خبره دی.

ځکه رايه ورکول د خاوری پلورلـو او هيواد پلورلو قبالـه نـه دی چـې هـر چاته دی زړه وغواړی ډالي يـې کـړه او معاملـه پـری وکـړه، د امريکـا سره امنيتـی هـوکړې قـانوني حيثيـت او تـاريخي بڼـه مقايسـه د دغـه تـړون خرنگـــوالې هيڅکلـــه د گنـــدمک، جمـرودو، روالپنـډي او ډيورنـډ سره د ذری هومره هم توپير نه لری. بـل لـور ته دولت د ملت په مانا ده، که چېـرې دولتونه د ملتونو نـه وي، نـو د ځـوړتيـا په لور تگ او پاشل کېدل هغـه حتمـی برخليک دی چې په شرقي نـړۍ کـې د گوډاگيو او ځـانتپلو واکمنـو پـه برخـه کې تر شاه لويه پر پړه لري.

مفکر يوازي پردی هـم بسـنه ونـه کړله بلکښې په نورو مـلي لومړيتوبونـو او ولسي ژمنتياوو يې پداسی حال کـې چې د جگړې له مشروعيت څخه يې را ونه کاږل، د جگړې لوچک ادبيـات يـې ورځني نوښت وگرزول، نه يې ورته کور پريښـود نـه گـور، پروپاگنـد د سـولې سـتراتيژی شـوله، ټکـول او د رهبرانـو وژل يې حـل لاره. حـال داچـې تجربـې ښودلې هر ډول عقيده، چې لـه سـخت مخالفـت سره مخـامخ شي، نــو ډېـر پلويان پيدا کوي او کله نا کله د پلويانو شـکنجه، ځـورول او د سرلارو وژل يـې



بیا په پرمختګ کې اغېزمن رول لوبوي او د پلویانو شمېر یې زیاتېږي ، چې د مولوی عبدالسلام ضعیف صیب په خبره افغاني ټولنه چې دودیز جوړښت لرې دلته د یو کس وژل د پنځو ۵ نور دښمنانو د زیږولو په معنی دی.

د دغه جرات او ارادې پایلی تر دی کچې یو اړخیزه ثابتی شولی چې افغانستان لکه د شلمي پیړۍ یوځل بیا یوازی د یو بلوک په غیږ کې واچول شو، هغه چې د غلطو داخلی او حساسیت پارونکو سیمه ایزو مانورونو له امله اوس هیواد د منطقه ایی قدرتونو له سخت انزواء سره مخ دی.

ځکه هغوی چې د امریکایي عسکرو په ورتلو د خوښۍ ځنې غورځولي او کاذب استدلال یې چلاوه اوس منطق دا دي داسې مهال چې بهرنیو تر سلو زرو زیاتو پوځیانو دلته شتون لرل امن ټینګ نکړای شو پداسې حال کې چې له امریکا سره په اصطلاح ترهګرۍ ضد جګړه کې د نړۍ هیڅ هېواد هم مخالف نه ؤ. د سیمې په کچه هم ټول ځواکونه د ترهګرۍ ضد جګړې له ائتلاف سره چې امریکا یې مشري کوله ملګري وو. اوس چې د امریکا د ترهګرۍ ضد جګړې څرنګوالی افشا شوی او د سیمې او نړۍ په کچه په ستره کچه مخالفتونه ورسره کېږي، کوم اصیل وجدان او غیرتمند ضمیر به په افغانستان کې د پوځونو پر زیاتېدلو ډاډه شي او دا به د افغانستان او سیمې په خیر وبولي؟؟ مګر نه دوی ( ګډ حکومت مشران ) ورته لاسونه پړه کوی او دا یې لکه د دوه بنو د سیالي او شریکې میدانه هم دی

د منتسکیو په خبره د لویزیان ځناور غواړي، چې مېوې تر لاسه کړي، ځکه ونې له بېخه باسي، د ظالم، مستبد او فاسدو حکومت څرنګوالی هم دې ته ورته دی. ځکه د دوی نړیوال بادارانو پردې پوهیږي چې د یوه ملت د له منځه وړلو او تباهۍ له پاره یوازې څو غله بس دي، چې د چارو واګې ور وسپارل شي او هغوی څنګه چې یې زړه وغواړي په هر څه معامله وکړي او هر ارزښت دی د خپل حوس او شیطانۍ غوښتنو په موخه په قمار ووهی، حتا که دا د یوه قام ملی حیثیت آزادی، سیاسي حیثیت خپلواکې او ولسی لومړیتوب سوله چې ژوند یې ورپورې تړلي هم وی.

د مونتسکیو په خبره د ظالم حکومت بنسټ ډار دی او له ډار څخه مقصد آرامي ده، خو باید پوه شو، چې دغه آرامي، سوله نه بلکې یوه داسې چوپتیا ده، چې هره شېبه د دولت په وړاندې دښمنۍ او کرکې پیاوړې کوي.

اوس ولس ته دی چې د مفکر بي تفکره، تشه او په شعاری تېر ایستلو ولاړه ځانتپلی آراده وننګوی، د یوالې په ټغر یې په وړاندی راټول شی او د هغو ډرون ویشتلو حساب ورسره وکړی چې ارګ یې په اړوند خوږ ګرول او سر ګرزول څه چې ساده د خواشیني اعلامیې هم نه خپروی. او حتا لکه د شیندنډ تر څو چې د هرات د والی ویاند نوه منلی دفاع وزارت هغه مظلومان ترهګر ګڼل او دولت وزیری یې په پشمي بریتو د ویاړ لاسونه هم راکاږل.

# دموکراسی و آنگ سان سوچی مداوای

# برای روهنگیای ها ندارند

حبیبی سمنگانی

اوباما در اوائل ۲۰۰۹م به عنوان چهل و چهارمین رئیس جمهور امریکا سوگند یاد کرد و وارد کاخ سفید شد، تنها ۱۱ روز گذشته بود که خبر رسید اوباما نیز در ردیف ۲۰۴ تن شخصیت های مهم جهان برای جایزهء نوبل در بخش صلح نامزد شده است ، وی پیش ازینکه سال نخست ریاست جمهوری خود را تکمیل بکند از سوی کمیتهء نوبل به این جائزه تقدیر گردید ، جهان در شگفت و تعجب ماند آخر اوباما چه شهکار و ابتکاری در راستای صلح انجام داده است ؟ ، آیا مناسب نبود تا پایان سالهای ریاست جمهوری وی انتظار می شد و سپس بررسی می شد آیا وی در واقعیت شایسته و سزاوار این جایزه است ؟ ، اما شاید وظیفهء اصلی کمیتهء نوبل خاک پاشیدن بر چشم های جهان است .

همین اوباما در زمان خود نه تنها به جنگ افغانستان ادامه داد و شمار نیروهای خود را درین کشور از ۷۰ هزار به یکصد هزار افزایش داد بلکه آغاز جنگهای لیبیا و یمن نیز در فهرست کارنامه های جنگی وی قرار دارد ، وی نیروهای خود را از عراق بیرون نمود و لیکن دیری نگذشت که دوباره بر عراق یورش آورد و نظامیان امریکای تا به امروز درین کشور عربی می جنگند ، وی در دو دوره ریاست جمهوری اش ۷ کشور مسلمان نشین ( افغانستان ، عراق ، شام ، لیبیا ، سومالیا ، یمن و پاکستان ) را آماج بمباران قرار داد و به ویژه تنها در سال اخیر ( یعنی ۲۰۱۶م ) ۲۶ هزار و ۱۷۱ بمب را بر این هفت کشور پرتاب نمود ، آگاهان باور دارند این آمار به مراتب کم تر از آنچه است که در واقعیت رخ داده است ، حتی شفاخانه ها نیز هدف بمباران امریکای ها قرار گرفت ، چنانکه ده ها تن مردم و پرسونل ملکی شفاخانهء پزشکان بدون مرز ( قندوز ) در بمباران وحشیانهء امریکای ها در اکتوبر ۲۰۱۵م جان باختند ، اما... کمیتهء نوبل هرگز از انتخاب خود پریشان و پشیمان نشد ، اما مهم تر اینکه آیا می دانید اوباما چه کسی را برای خود الگو قرار داده بود ؟ ، آن کسی دیگری نبود خانم آنگ سان سوچی بود .

« آنگ سان سوچی » خانم ۷۲ ساله در سال ۱۹۹۱م به جایزهء صلح نوبل تقدیر شد ، این خانم دران زمان از سوی رژیم نظامی میانمار در حبس خانگی قرار داشت ، جایزهء وی را پسر ۱۸ ساله اش الکس اریس به دست آورد ، الکس در سخنرانی اش گفت : « این جایزه برای مردم میانمار است ، پیروزی نهای در پیکار دراز مدت صلح ، آزادی و دموکراسی را در میانمار به ارمغان خواهد آورد » ، شکی نیست ، خانم سوچی این جایزه را در بدل قربانی های زیادی برای احیای دموکراسی و مبارزه با رژیم دیکتاتوری میانمار به دست آورد و به چهرهء اسطوره ای در جهان دموکراتان شهرت یافت ، حتی رئیس جمهور امریکا اوباما و صدر اعظم بریتانیا گوردن براون نیز این خانم را برای خود الگو قرار دادند .

دموکراتان جهان هرگاه به تحسین و ستایش این خانم بپردازند لامحال از جرات گفتار وی لاف می زنند ، از نگاه دموکراتان یکی از ویژگی های خانم سوچی اینست که در برابر ظلم هرگز ساکت نمی ماند و هیچ نیروی نتوانسته است زبان وی را قفل بزند ، اما.... زبان خانم

سوچی در قبال مسلمان های میانمار قفل خورد و یا هم شاید این بار طرز پندار و گفتار این خانم تغییر کرد ، جورج مونبویت در روزنامهء گاردین می نویسد : « درست است هنوز هم نظامیان در میانمار قدرت زیادی دارند و دائرهء اختیار خانم سوچی خیلی ها محدود است ، اما وی می توانست راه های قانونی را پیش رو بگیرد ، وی یک نیروی خاص را در اختیار داشت که نیروی زبان است ، در گذشته ها رژیم نظامی هم نتوانسته بود زبان وی را خاموش نگهدارد ، اما خانم سوچی حالا نه تنها خاموش است بلکه مظالم را که حتی اسناد و شواهد دارد رد می کند ، همچنان راه کمکهای بشر۔ دوستانه ای ملل متحد را همین خانم سوچی مسدود کرده است » .

جورج مونبویت می افزاید : گمان دارم خانم سوچی لازم ندانسته است تا راپوری را که کمیسیون حقوق بشر۔ سازمان ملل متحد در ماه فروری در مورد ظلم و وحشت بر مسلمان های روهنگیای تهیه کرده است مطالعه بکند ، این راپور از وحشت های ترسناک و هولناک پرده بر می دارد ، این راپور حکایت می کند که زنان و دختران خورد سال چطور مورد تجاوز جنسی قرار گرفتند و سپس کشته شدند ، نیز راپور خبر می دهد چگونه همه اعضاء خانواده ها گردن زده شدند و پسران پیش روی پدران و مادران ذبح شدند ، استادان و افراد کهن سال پس از یک محکمهء کوتاه به مرگ محکوم شدند ، هلیکوپترهای جنگی قریه ها را بمباران نمودند ، مردم های که در خانه ها محصور مانده بودند زنده آتش زده شدند ، زنان حامله در اثر شکنجه های شدید نظامیان به شهادت رسیدند و حتی مردم که بر کشتی ها سوار بودند و فرار می کردند هدف گلوله های رسا قرار گرفتند و جان باختند ، اما خانم سوچی نه تنها تیم تحقیقاتی ملل متحد را از بررسی وضعیت مسلمان ها ممانعت کرد بلکه حتی اجازه نداد برای کسانیکه تعذیب و شکنجه شده اند آب آشامیدنی ، مواد خوردنی و ادویه انتقال داده شود ، دفتر خانم سوچی ادعا نمود این کمک ها ممکن به دست تروریست ها برسد .

صوفیه احمد در گذشته ها از حامیان سرسخت خانم آنگ سان سوچی بود ، اما وی حالا در مقاله ای خود در روزنامهء ایندیپیندنت می نویسد : چنان به نظر می رسد ما اشتباه کرده بودیم ، آنگ سان سوچی چنانکه ما باور داشتیم قهرمان قرن بست و یک نیست ، ما می خواستیم وی قهرمان باشد ، اما سکوت وی بر چنین وحشت ظاهر می سازد وی دموکراسی و حقوق بشر را تنها برای رسیدن به اهداف خود می خواست ، این دموکراسی ارمغانی برای مسلمان های روهنگیای نداشت ، به هر کیف هنوز هم کسانی هستند که فکر می کنند هدف از سکوت خانم سوچی بی طرفی وی است ، اما چنانکه پاولو فیری می گوید : « در هنگام درگیری ظالم و مظلوم بی طرف بودن به معنی همکاری با ظالم است ، آنگ سان سوچی هرگز ادعا نمی تواند که در موضوع نسل کشی روهنگیای ها بی طرف است ، وی به حیث رهبر حزب مقتدر کشور سهم بارز درین بازی خونین دارد .

انتخابات پارلمانی میانمار به تاریخ ۸ نومبر ۲۰۱۵م برگذار شده بود ، بنده در همان روز مقاله ای را به عنوان « انتخابات برما و یاد مسلمان های روهنگیا » نوشته بودم و در سطور اخیر آن وضعیت مسلمان های روهنگیا را در سال های آینده چنین بررسی و پیش بینی کرده بودم : « حاصل اینکه اگر آنگ سان سوچی ، بلی این مدافع حقوق بشر۔ در انتخابات کنونی برنده شود هیچ سودی برای مسلمان های روهنگیای ندارد ، زیرا وی به رای بودای ها و برای بودای ها انتخاب می گردد ، هر چه سرنوشت مسلمان ها چه خواهد شد ، همان فیصله که رئیس جمهور فعلی برما کرده بود ( یعنی روهنگیای ها باید از برما بیرون شوند ) شاید در دوره ء خانم سوچی خوبتر تطبیق گردد ، دموکراسی برای مسلمان های روهنگیای چه خدمت کرده است خوب فکر کنید » ، متاسفانه ، آیا واقعیت چنین نیست ؟

# راپور

## د ټرمپ سوچ د افغانستان په طبیعي زېرمو کې بند دی

فارين پالیسي مجلې يوه مقاله خپره کړې او لیکلي يې دي چې تېره میاشت د امریکا ولسمشر- ټرمپ د يوې کیمیاوي کمپنۍ له مشر سره غونډه درلوده او د افغانستان د سترو طبیعي زېرمو د اقتصادي ارزښت او استخراج په اړه يې خبرې کړي.

د (امریکن الیمنټس) کمپنۍ چې فلزي او کیمیاوي مواد تولیدوي، رئیس (مایکل سلور) په غونډه کې ټرمپ ته ویلي چې په افغانستان کې د مسو، اوسپنې او نورو کم یابه فلزي عناصرو ډېرې سترې زېرمې تر خاورو لاندې پټې دي، چې ارزښت يې يو تریلیون ډالرو ته رسیږي.

فارين پالیسي- مجله لیکي چې د افغانستان طبیعي زېرمو ته د ټرمپ هوس او اشتها په لومړي ځل ولسمشر- اشرف غني راوپاروله. د يو امریکايي چارواکي په وینا، اشرف غني د ریاض کنفرانس په څنډو کې له ټرمپ سره وکتل او هغه ته يې وويل» :مونږ په ډېره ستره خزانه باندې ناست یو .«نوموړي همدا راز ټرمپ ته وويل» :ولې د چین په ځای امریکايي کمپنۍ دا کار نه کوي؟.«

د (امریکن الیمنټس) کیمیاوي کمپنۍ له مشر سره په غونډه کې په دې تاکید شوی چې ټرمپ او د هغه مرستیالان باید په افغانستان کې يوه عاجله حل لاره پیدا او د کلونو روان بندبست ته د پای ټکی کېږدي، ترڅو د اشرف غني په وینا، امریکایانو ته د سترو خزانو د استخراج زمینه برابره شي.

فارين پالیسي مجله لیکي چې که څه هم په شپاړس کلنه جګړه کې د ۲۴۰۰ عسکرو تر وژل کیدو او د څه باندې يو تریلیون ډالرو تر مصرف وروسته اوس په امریکا کې د جګړې د غځولو لیوالتیا ډېره کمرنګه ده، خو دا چې له افغانستان څخه د طبیعي زېرمو د شتون هڅوونکې خبرې راځي، د ولسمشر ټرمپ اشتها راپاروي.

مجله سپيني مانۍ ته د يوې نږدې سرچينې په حواله لیکي چې ټرمپ د يوې تجارتي ګټې په لټه کې دی او غواړي په روانه جګړه کې د امریکا مالي زيان جبیره کړي.

خو د افغانستان د جګړې په اړه د ټرمپ متناقض او مشکوک دریځ په پنټاګون کې نهیلي راټوکولې، په کابل کې يې وېره ګډه کړې او په امریکايي اداره کې يې جنجالونه پیدا کړي. دغه راز يې د يادې کیمیاوي کمپنۍ او د بلک واټر قراردادي کمپنۍ په څېر جهتونو ته هم لار پرانیستې چې له موقع څخه استفاده وکړي؛ څوک د معادنو د استخراج ژمنې ورکوي او څوک سينه ډبوي چې په شخصي- جنګیالیو د جګړې رخ بدلولی شي.

مجله لیکي چې ټرمپ په سخت امتحان کې ګیر دی او نه پوهيږي چې څرنګه د امریکا په تاریخ کې تر ټولو اوږده جګړه مهار کړي. خو دا چې له نورو انتخابونو څخه د

مایوسی حد ته رسیدلی د بلک واټر انتخاب یې یو څه پام جلب کړی.

د جمعې په ورځ ټرمپ له خپلو سلاکارانو او امنیتي چارواکو سره غونډه درلوده او تمه وه چې د افغانستان په اړه به نهایي پرېکړه وکړي. خو په جورج واشنګټن پوهنتون کې د بهرنیو اړیکو د چارو استاذ (ستیفن بیډل) فارین پالیسي مجلې ته مخکې له مخکې وړاندوینه کړې وه چې هیڅ کومې پرېکړې ته به ونه رسیږي.

د پنټاګون اوسني او پخواني چارواکي وایي چې ټرمپ د جون په میاشت کې یوه هڅه وکړه چې خپل ځان له جګړییزو چارو لرې وساتي او د دفاع وزیر ته یې د اضافي عسکرو د لیږلو صلاحیت ورکړ. خو نوموړي یې خبره نادیده ونیوله او دا کار یې تر هغه ځنډاوه ترڅو ټرمپ یوه واضحه تګلاره لاسلیک کړي او په دې توګه یې د لوبې بال بیرته د ټرمپ خوا ته وغورځاوه.

فارین پالیسي مجلې ته یو پخواني حکومتي چارواکي ویلي چې د دفاع وزیر» نه غواړي افغانستان ته اضافي عسکر ولیږي په داسې حال کې چې دا احتمال موجود وي چې هسې نه سبا ورته امر وکړي چې اوس ټول ځواکونه بیرته راوباسه.«

پنټاګون وایي چې د تېرې مې په میاشت کې د افغانستان په اړه یو تصمیم ته ډیر نږدې شوي وو او تمه وه چې ټرمپ په بروکسل کې د ناټو کنفرانس ته له همدې طرحې سره لاړ شي. په دې طرحه کې د افغان عسکرو د تربیه کولو لپاره د اضافي عسکرو لیږل او له پاکستان سره توند ډیپلوماتیک چلند شامل وو. دغه راز له طالبانو سره د سولې په خبرو هم ټینګار شوی و. خو ټرمپ ونه منله او د طرحې له پوځي برخې سره یې مخالفت وکړ.




فارین پالیسي مجله وړاندې لیکي چې د ټرمپ لپاره افغانستان تر ټولو ناوړه اقتصادي ګټه ده، ځکه چې ډیر وخت ته هم اړتیا لري او په اخیر کې یې د کامیابۍ هیڅ تضمین نشته.

خو یو بل امریکایي چارواکي نوموړې مجلې ته ویلي چې د جمعې په ورځ ټرمپ له خپلو سلاکارانو سره په دې ستراتیژۍ بحث کاوه چې د عسکرو شمېر ۱۵۰۰۰ ته لوړ شي او له پاکستان سره په اړیکو کې بدلون راشي. خو د دفاع وزارت نظر دا دی چې امریکایي ځواکونه په افغانستان کې د خپلو لوجستیکي اکمالاتو لپاره پاکستان ته محتاج دي.

فارین پالیسي مجله وایي چې که څه هم پوځي جنرالان او ډیپلوماتان په دې نظر دي چې د افغان حکومت د ژغورلو او د جګړې د خاتمې یوازینۍ لار له طالبانو سره مذاکرات دي، خو اوسمهال د امریکا د حکومت داخلي بحثونه د دې پرځای چې له طالبانو سره د مذاکراتو په څرنګوالي راوڅرخي، په نظامي عملیاتو او د افغان ځواکونو په روزنې راغونډ دي.

خو که هره پوځي طرحه غوره کیږي، د مجلې په باور، د ټرمپ لپاره په کې د افغانستان طبیعي زیرمې لومړیتوب لري.

# په اسلامي شریعت کې د بتانو پلورل او پیرودل

# په مطلق ډول حرام دي

مفتي سعید

درمضان دمیاشتې په یوویشتمه چې د ۶۱۰ م کال داگست له لسمې سره سمون خوري ،خاتم النبیین اورحمة للعالمین حضرت محمد ﷺ دالله تعالی له لوري دبشریت دهدایت لپاره راولیږل شو ،اودنبوت پخپله درویشت کلنه موده کې یې دعربو په خاوره کې دالله تعالی په حکم دشرک اوجاهلیت گردمراکز ړنگ کړل اوهغوی یې دجاهلیت له رسومو اوبدعتونو نه دتل لپاره خلاص کړل ،په زرگونو بتان یې دخپلو تورپالیو ملگرو پرکروړلیومتو مات کړل اوخپل امت ته یې داروزنه ورکړه چې په هردورکې بایددوی هم دغه سنت ژوندي وساتي اودغیرالله په ضدتلپاتې جهادته دنړۍ ترپای دوام ورکړي ،برابره خبره ده که غیرالله ذی روح وي اوکه جامدبتان وي .دغه رازددولسمې هجري پیړۍ دهندوستان عظیم مصلح اومفکر دشریعت اوطریقت امام شاه ولی الله محدث دهلوی رحمه الله لیکلي دي ،چې داصناموماتول ابراهیمي اومحمدي سنت دي اوپرهرمسلمان لازم دی چې پردغه سنت عمل وکړي ،ځکه چې دادفی سبیل الله جهادمهمه برخه ده چې هیڅوک یې هم مقتضی الحال اومصلحتونوڅخه قربانولی نه شي اونه ورته رواده چې داسې وکړي.

زموږگران هیوادافغانستان په اسلامي تاریخ کې دهجرت له دویمې پیړۍ اوپه نوره نړۍ کې له شپږمې پیړۍ څخه وروسته په بتانوماتولوکې سیال نه لري.داسلامي نړۍ سترفاتح ،دحق دلارې اتل غازي زموږدهیوادنومیالی واکمن یمین الدوله سلطان محمود غزنوي رحمة الله علیه دافغانستان هغه ځواکمن واکمن ؤ،چې په کلمة الله یې راسخه عقیده لرله اوداسلام ددین دخپریدولپاره یې ډیرې هلې ځلې کړي دي ،ده (۱۷) ځله پرهندیرغل ورووړاوهریرغل یې ستربری وگاته ،په همدغه سوبوکې هغه ته دغازي لقب ورکړشواوبیاچې یې کله پرسومنات یرغل وکړاودهندوانوهغه لویه بتخانه چې دهندتول راجه گان یې دساتلولپاره راغونډشوي وو،ټوټې ټوټې اوله خاوروسره خاورې کړه،نوهغه ته دلوی فاتح اوبت شکن لقب ورکړشو.

ابوریحان البیروني په خپل اثر«ماللهند»کې لیکي :سومه مانا سپوږمۍ او دنات ماناآقایاښاغلی دی،یانې ښاغلې سپوږمۍ.سومنات بت دهندله ستروبتانوڅخه ؤ،هندوان په هغوشپوکې چې سپوږمۍ پوروړې نیولې وې ،څه دپاسه سل زره کسان دسومنات شاوخواراټولیږي ،هغوی په دې باوردي ،چې هرکله روح له انسان څخه وځي ،سومنات ته راځي اودسومنات چې چاته خوښه وي ،دهغه روح په واسطه یې بیاراژوندی کوي.هندوانوبه ډیرې گران بیه غاړکې دغه بت ته ورپه غاړه کولي ،مجاورانو ته به یې ډیر ارزښتمند

ځیزونـه ډالـی کول،هغـه کـلي چـې سومنات ته وقف کړای شوي و،شمیریی څه دپاسه لسوزروته رسیده .ددې بتخانې جـواهرات لـه شـمیرنه بهرؤ،دګنګالـه سیندڅخه ،چې هندوان دډېردرنښت په سترګه ورګوري اوله سومنات څخه ددوه فرسخوپه واټن پروت دی،به یی اوبه راوړلې اوهره ورځ به یی سومنات تـه په هماغه اوبوغسل ورکاوه .سومنات ته هره ورځ یوزرکسـه بـرهمن دعبـادت لپـاره ورتلل.ددې بت دخدمت کولولپاره درې سوه نارینه ټاکل شوي ؤ،چې په ښکلې جامه کې به هـره ورځ هلته ولاړؤ،درې سـوه نارینـه اوپینځـه سوه ښځې بـه پـه نڅااوموسـیقي اختـه وې،چـې دوی هریوټاکلې تنخواوې درلودې.ددې بت ددرنښت لپاره به یی له کشمیرڅخه تـازه ګلان راوړل اودبت په غاړه کې بـه یـی امیلول.ددې بتخانې دیوالونه له مسوڅخه اوستنې یـی لـه زروڅخه جـوړې کـړای شـوې وې،دا بـت خانـه پـه ډول ډول ځراغونورڼاشوې اوښکلې پردې پکې ځـړول شـوې وې .ددې بـت مخـامخ یوزنګ ځړول شوی و،چې دوه سوه منه وزن یـې ؤاوپـه ځینوځـانګړووختونوکې غـږول کیده.دسـومنات دسرجوغـه لـه ډېروقیمتـي جواهراتوڅخـه جـوړه اولـه چت څخـه یـی پـه سرورځوړنـده کـړې وه.واړه بتان ،چې له سرواوسپینوزروڅخه جوړول،شاوخوااینښودل شـوي اوداسې ښکاریدل ،چې دسومنات خـدمتګاران دي.

ګـڼ شـمیرمؤرخین لیکـي، چـې دسـومنات بـت هماغـه داوس اوخـزرج دقومونوبت دی،چې دبنی ثقیف دلات اودقریشودعزی بت ملګری ؤ.کله چې زموږپیغمبرحضرت محمدصلی الله علیه وسلم هغه بتان له منځـه یـووړل، کـافرانو منـات پـټ او دجزیـرې لـه لارې یـی ګجـرات تـه ،چـې لـه پخواراهیسـې دکافرانومرکزؤ،راووړاوهلتـه یـی یـوه ښکلې دبرینه بتخانه جوړه کـړه اوداسې خبریی خپورکړچې دابت ګنې پخپله لـه اوبوڅخـه راوتلـی دی اونـوم یـی ورتـه ځکه سومنات وټاکه ، چې اصلي نوم یی په دې نوم کې پټ شي .ویل کیږي چې کلـه سـلطان دسـومنات بـت ماتـاوه،ګڼ شـمیربراهمه راغلـل او دسـلطان نـږدې کسانوته یی وویل،چې که چیرته سلطان بت ته زیان ونه رسوي ،موږبه ډېرزیـات سره زر دسـلطان خزانـې تـه ور وسـپارو، ددولـت کسـانوداخبره دسلطان ترغـوږو ور ورسوله، سلطان وویل :دوی چې څـه وایی،ډېـره ښـه خـبره ده،خوکـه دوی پـه غوښتنه عمل وکړم،( محمود بت فروش) به مې بولي اوکه چیرته یـی بـت ورمـات کړم،(محمودبـت شـکن). ښـه بـه داوي ،چې په دنیا او اخـرت کـې دمحمودبـت شکن په نامه یادشم.بیایی چې کلـه بـت مات کړنویی وفرمایل:دبت ټوټې دې پـه اوښ بـارغزنـي تـه راوړل شي،ترڅـویـوه ټوټه کعبې مکرمې ته واستوی اودخدای دکورندرانه شي اویوه ټوټه یې دغزني په عروس الفلک جومات کې ایښـودل شي

،ترڅوخلک جومات ته دننوتلوپروخت پښـه پـرې کیـږدي اوڅـه برخـه یـې پـه بغدادکې خلیفه ته واستول شي .سـلطان محمـود تـه ددې بـرې دتـرسره کولوپـه برخـــه ټولومسلمانانوشـــاباس ووایـــه، ددربارشـــاعرانو پـــه دې اړه قصـــیدې ولیکلې ،اودده ددې کارستاینه یی وکړه.

دسلطان محمودغزنوي نـه وروسـته ثـانی سـلطان محمودسـترمجاهداودنړۍ لـوی مبـارزامیرالمؤمنین ملامحمـدعمر مجاهـد(نورالله مرقـده) تـه الله تعـالی پـه حـق بانـدې دثبـات اواسـتقامت توفیـق ورکړ، دهیڅا پروایـی ونکـړه اوداسـلامي شریعت حکـم یـی پرځـای کـړ اودبـودا مجسـمې یــې ونړولــې، اروابنــاد امیرالمومنین په ډېره بې سارې میړانه اونه هیریـدونکې اقـدام سره دپنځلسـمې هجري پیړۍ په دویمـه لسیزه کـې دنبی کریم صلی الله علیه وسلم هغـه فرمـان احیـاء اوپرځـای کړچـې خپلوصـحابه کراموتـه یـی دبتانودماتولوپـه اړونـدکړی ؤ.د۱۳۷۷ ش کال دسلواغې پـه میاشـت کې دافغانستان داسلامي امـارت غازیـانو دامیرالمـومنین رحمـه الله دفرمـان دپـلي کولوپه خاطردتکبیرونو داذانګوپه بدرګه دبامیـانو دوه مجسـمې پـه خپلـو کفـر ځپونکو تاړاکونو دړې وړې کړې.

دبامیانودښارشـــمال شرق لورتـــه کوشـانی شـاهانوپه دویمـه اوڅلورمـه میلادي پیړۍ کې دادوه مجسـمې دغره پـه لمنـه کـې دلویوتیګونـه حکـاکې



اوتراشلې دي.وړوکی بودا (۱۲۰ ) فوټه لوړوالی لري اولوی بودا (۱۷۵) فوټوته رسیده.دبامیانودبودائي بتانوعبادت لپاره به هرکال له جاپان ،چین،نیپال،هند اونوروهیوادونوڅخه په زرګونوبودایان نارینه اوښځې هرکال کابل اوبیابامیانوته دهغوی دعبادت اونماځنې لپاره راتلل ،خوکله به چې دضحاک ښارته نږدې ورسیدل په ملاتیټ اونیموپټوسترګوبه یی په ډیرتعظیم اودرناوي دمجسموپه لورحرکت کاوه.کله چې به مجسموته نږدې رسیدل هغه وخت به یی په یوځای سترګې خلاصولې اودبودازیارت به یی کاوه.که چیرته به یوزیارت کوونکي وړاندې له وخته دبوداپه لورسترګې خلاصې کړې دهغه وخت زیارت به مقبول نه ؤ.دبوداچارچاپیره څه دپاسه څلورزره دعابدانودعبادت ځایونه اودزیارت کوونکوداوسیدلولپاره غارونه هم موجودؤ.افغانستان ته راتلونکي بودایان باخاره نه ووچې په زحمت ګټلې دولت دبامیانودسپیروغرونودلیدلولپاره یی ولګوي اودسفرستړیاوې اوخطرونه صرف دسیل لپاره پرځانوومني،بلکه داهغوی خپله دیني اوعقیدوي فریضه ګڼي چې هرچیرته دهغوی دمعبودګوتم بودمجسمې اوتمثالونه وي ورته لاړشي عبادت یی وکړي.دافغانستان په څیرپه یواسلامي هیوادکې چې بودایی هم نه وي اوله نوروهیوادونوڅخه بودایان دخپلومعبودانولپاره راځي اوافغانان ددوی دبتانوساتنه کوي ،نویومسلمان ته

به داشرعاروواوي چې دمادیاتوپه خاطریاله کافرانوڅخه دویرې له لامله دهغوی دبتانومنجوري وکړي په داسې حال کې چې الله تعالی اودهغه رسول صلی الله علیه وسلم یی دماتولواوانهدام حکم کړی وي،نودیوکمونیست یاډارن مسلمان لپاره به دالله تعالی اودده درسول احکام بی ارزښته وي مګر دارواښاد امیرالمومنین ملامحمدعمرمجاهداودهغه دمخلصواوپردین مینو لارویانولپاره ددوی دسرونوپه بیه ارزښت لري ځکه یی دغه دکفري دین منارو نړاوو.

ځینومغرضینوپه هغه وخت کې عالیقدرامیرالمومنین رحمه الله ته دامشوره ورکوله چې دبودامجسمې دې نه نړوي بلکه هرکوم هیواد یی چې دپیرودلوهوډمن وي پرهغه بانديې دې وپلوري اوځان ته دې ستونزه اوکړکیچ نه ایجادوي ،په داسې حال کې چې دشریعت لارښودحضرت محمدصلی الله علیه وسلم په روښانه اوصریح توګه دبتانوپلورل اوپیرودل حرام ګڼلي دي

،په بخاري شریف کې په دې اړه ځانګړی باب وضع کړی شوی دی ،چې دبتانودپلورلوحرمت یي پکې په متعددواحادیثوثابت کړی دی ،چې دبیلګې په توګه دایومبارک حدیث دلته رانقل کوو:عن جابربن عبدالله رضی الله عنمهاانه سمع رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول عام الفتح وهوبمکة «ان الله ورسوله حرم بیع الخمروالمیتة والخنزیروالاصنام » فقیل :یارسول الله أرایت شحوم المیتة فانه یطلی بهاالسفن ویدهن بها الجلود ویستصبح بها الناس فقال : «لاوهو حرام»، ثم قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عندذلک : قاتل الله الیهود،ان الله عزوجل لماحرم علیهم شحومهاأجملوه ثم باعوه فأکلواثمنه ).

دژباړې خلاصه:جابر دعبدالله زوی وایی، چې ماله نبی عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دمکې مکرمې دفتحې په ورځ واوریدل چې ویی فرمایل:په تحقیق سره الله تعالی اودهغه رسول دشرابو،مرداري ،خنځیراوبتانوپلورل حرام کړیدي ،ورته

وویـل شـو:ای دالله رسـوله !تـه مورتـه دمردارشـوي ښـاروي دوازدوپـه هکلـه خبرراکـړه چې روادي،ځکـه چې هغـه دکیشـتي غوړولــو،دځرمنې رنګولــو، اودڅـــــراغ لګولولپــــاره خلــــک اسـتعمالوي.نبی علیـه السـلام ورتـه وفرمایـل: نـه، هـر ډول ګټـه ورڅخـه اخیستل حرام دي.بیایې وفرمایل:الله دې یهودیان هلاک کړي ،کله چې الله تعالی دښـارویووازدې پرهغـوی حرامې کـړې نوهغوی داحیله ورته جوړه کړه چې هغه به یې ویلې کړې اودغوړیوپه ښیربه یـې پلـورلې اوپیسـې بـه یـې خـوړلې،یعنې دهغـوی اخیسـتلی بیـه بـه یـې اخیسـته اوځانونوته به یې حلاله ګڼله اوګټه به یې ورڅخه اخیسته.

په مسـلم شریـف کـې هـم پـه دې بـاب زیـات شـمیراحادیث راغـلي دي ، اوامام نووی رحمه الله یـې پـه شرح کـې داسې ویلي دي:دبتانوپلورل له دې لامله حرام دي چې دهغوی په پلورلـوکې ګټـه نشته ،بلکه داسلام اومسلمانانولپاره زیـان دی ځکه دشرک پیاوړی کول دي ،دغـه رازامـام ابـوداود رحمـه الله هـم یوشـمیر حدیثونه دخپل سنن په کتاب البیوع کې روایت کړي دي اوپه همـدغواحادیثویی اسـتناد کـړی دی چــې دبتــانوپلورل اوپیـرودل پـه اسـلامي شریعـت کـې پـه مطلق ډول حرام دي.

دعالیقــدراميرالمومنین رحمــه الله دغه جرأت مندانه عمل ټوله کفري نړۍ په لړزه کړه ،داروپاصلیبي اسـلام دښـمنه اتحادیه ،صلیبیان ،یهودیـان ،کمونیسـتان اوسـیکولروګړي دبامیانودبودامجسـمې نړولوخورازیـات خواشـیني کـړل اوهـم دافغانسـتان ځینـې سـیکولران اوپخـواني کمونیستانو هم دکفري نړۍ دخوشالتیا او ملاتړجذبولوپه تمه یې خواشیني وښوده، اودایـې پـه خپلووینـاووکې دافغانسـتان مسـلمان اولـس تـه پـه ډاګـه کـړه چـې دبتانوپالنــه قبـیح عمـل نــه دی اولــه مشرکینوسره دوستانه اړیکې لرل روادي.

پــه هرصـورت مسـلمان شـخص اومسلمان حکومت ته نـه یـوازې داچې دبتانوساتنه اومراقبت پرې حرام دی بلکه دبتانوماتول اودشرک هرډول بقایاله منځه وړل پرې بانـدې فـرض دي اوپـه دې اړه دخــاتم النبیــین حضــرت محمــد صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ هغه مبارک احادیث چې پـه هغـوکې یـې خپلوامتیانوتـه دبتانوپـه مــاتولوحکم کــړی دی اودهماغــو احادیثوپـه اسـتدلال داسـلامي امـت حقپالوعلماؤ،حـدیث پوهـانو اومفتیـانو دافتـوا ورکـړې ده چـې بتخـانې نـړول اودبتانوتکسیردهرمسـلمان اوداسـلامي حکومت دامیر دیني فریضـه ده،چې لـه نیکه مرغـه دافغانسـتان داسـلامي امـارت عالیقــدراميرالمومنین ملامحمــد عمــر مجاهدرحمه الله عمل پرې وکړ اوداسلام تیربرم، پرتم او اوکـوب یـې احیـاءکړ، دا ځکـه چـې امیرالمـومنین دا انګیرلـې وه چــې دافغانسـتان دمجاهـدملت یـونیم ملیون مومنانوخپل ځانونه ددې لپـاره الله تعالی ته نذرانـه کـړل چـې پـه افغانسـتان کـې دیـوالله تعـالی نمانځنـه وکـړی شي یوازې دالله تعالی بنده ګـان ژونـدوکړي، داسلامي نظام له سیوري لاندې هوساینه ،سـوکالي اوویسـاتوب ترلاسـه کـړي، داسلام دمقـدس دیـن دشـعائرواوثقافت سـاتنه وکـړي نـه دکفـري ثقافـت دپـاتې شونو، دافغانستان اسلامي امارت دمومن ملت اوګردې اسلامي نـړۍ ارمـان تـرسره کړاونړیوالوتــه یــې پــه عمـلي ډګرکـې داثابته کړه چې دافغانستان مجاهـدولس له هیڅ ډول ګـواښ اوبلوسـې ښخـه ونـه ویریده اودالله تعالی دافرمان یـې پرځـان کې ثابت کړچې دصادقومومنانوپه هکله یې فرمایلي دي:«یجاهدون فی سبیل الله ولایخافون لومة لائم».زمالـه دې لیکنـې څخه غرض اومقصد هغو ځینو مغرضـو خلکوته ددې خبرې ځواب ویـل ؤچې دوی داســلامي امــارت دغــه نــه هیریــــدونکې کارنامــــه دفرهنګـــــې میراثونواوتــاریخي ویاړونوویجــاړونکې ګڼـي ،پـه داسـې حـال کـې چـې دوی داســلام دمقدســاتودرناوی نــه کــوي اوداسلام دمقدس دین له روح څخه بې خبره پاتې دي.

# له ۱۷ کلونو وروسته امریکا

# دافغانستان جګړه ورلای شي؟

**جمیل میرنی**

په افغانستان کې د اشغالګرو امریکایي قواوو قومندان جنرال (جان نیکلسون) وایي چې امریکاپه هرقیمت بائید د افغانستان جګړه دځان په ګټه اوبري تمامه کړي.

نوموړي چې داخبري پرون په کابل کې یولړمراسموته کولې زیاته یې کړه چې په افغانستان کې امریکاددې لپاره جګړه پرمخ بیایي چې امریکایی ګټې اومنافع ورسره تړلي دي ، دهغه په وینا که دافغانستان جګړه مونږ بایلو اوشکست وخورولکه چې همداسې ذهنیت جوړشوی نوله هغې سره به امریکاتاریخي اودروندزیان ووینې اوداجګړه ممکن دامریکاداخل ته ورسیږي!!!

خودامریکایي قواوو مشرداونه وئیل چې دافغانستان جنګ به امریکایان په کومه پاته ستراتیژي اوتصمیم دبري په درشل دروي اوهغه کوم تکتیکونه دي چې تراوسه پوري امریکایي جنرالانو په افغانستان کې ندي کارولي ؟

امریکادناټوقواوو په ګډون دنیږدې ۵۰ هیوادونویونیم لک لښکري افغانستان ته دجګړې لپاره راوستلې اوخپل ټول جنګي قوت اوعصري ټکنالوجي یې وکاروله خوانجام یې هاغه وو چې دامریکاپخواني ولسمشر( اوباما) له سپیني ماڼی څخه له وتولږ وړاندي په مړاوو سترګو اعتراف وکړچې نه یې په افغانستان کې امن اوثبات راوست اونه یې جګړه منطقي انجام ته ورسوله، بلکې له خپل ټول قوت کارلوسربیره یې طالبان مات نشوکړلای ؟

مونږ له امریکایي قومندان نیکلسون څخه پوښتنه کوو چې دامریکااوسني ولسمشر( ټرامپ) ولې ستاسې په ګډون امریکایي جنرالان وګواښل چې یوه نه ګټل کیدونکي جګړه یې هغه ته په میراث پرې ایښې؟

همدغه علت دی چې له ټرامپ څخه یې لاراوګودر ورک کړی چې دافغانستان په اړه کومه ستراتیژي اوتګلاره جوړه اواعلان کړي !!!

له بل لوري نیکلسون ددې لپاره چې په افغانستان کې جګړه توده وښیی اودټرامپ ذهن مختل کړي چې دطالبانوپه وړاندې یې عملیات په چټکی روان دي نودعاموافغانانومرګ ژوبلې ته یې مټې بډوهلي ، چې ورمه ورځ یې دننګرهار دهسکې میني ولسوالی په مربوطاتوکې دډرون بریدپه توسط دلسګونوبې دفاع افغانانوقتل عام ښکاره اوڅرګنده بیلګه ده .

یعني اوس امریکایي جنرالان یواځې همداستراتیژي په لاس کې لري چې عام وګړي په نښه اوهمدا د امریکا دخوندیتوب په برخه کې یوه لاسته راوړنه وښیي.

له بل اړخه دامریکا یوشمیر سناتوران په دې هڅوکې دي چې دافغانستان دجګړې په اړه د ټرامپ ممکنه ستراتیژۍ په دې وځرخوي ترڅوجګړه په یومخیز ډول دملي اردو غاړې ته ورواچوي اوامریکایان یې دهوایي ملاتړ ترڅنګ بیدریغه تجهیزاواکمال ته توجه وکړي

امریکادملي اردودتجهیزپه برخه کې تردې دمه ۷۶ ملیارده ډالرلګولي په زرګونوټانګونوسربیره یې په تیرودریو کلونوکې ۶۰۰ سوه زره مختلف النوعه وسلې دهغوئ په اختیارکې ورکړي له ۲۰۰۷ کال راپه دې خوایې ۱۵۰ جنګي چورلکي ورسپارلي (کوټ ، پتلون، بوټونه اوچاکلیټونه ) خوپه ځای پریږده ؛ خو په هغو سربیره هم په ورځ کې یوه دوه ولسوالی ترینه مجاهدین په تشو لاسونیسي او په انبارونووسلي ، مهمات اووسائیط ترینه دناصر رب جَلَّجَلَالُهُ په نصرت ولجه کوي!!

اوس نه پوهیږو چې هغه کوم تجهیزاواکمال دی چې په تیرو۱۷ کلونوکې امریکایانودملي اردوپه حق کې سپمولی اوورکړی یې نده ؟

هویوشی یې په رښتیاهم نده ورکړی اونه به یې ورکړي چې هغه ته مورال اوروحیه وایي ، امریکایان خپله دطالب په وړاندې له دغه تشې اونیمګړتیاسره لاس اوګریوان دي اوتاریخي شکست یې له همدې اړخه وخوړ نوهغوئ به په خپل زبون زده حالت کې خپلې ګوډاګی اردوته دجنګ په میدان کې (روحیه اومورال ) له کومه پیدا او په څه ډول وړپوره کړای شي!!؟

## خاین حکام څرنګه د اشغالګرانو د وحشت پروړاندې

# عامه افکار غولوي!؟

سیف الله

د افغانستان او جنوبي اسیا په اړه د ټرامپ د ستراتېژۍ له اعلانه وروسته د امریکایي ځواکونو نظامي فعالیتونه ډېر زیات شوي دي. په افغانستان کې د امریکایي ځواکونو د هوایي بریدونو د زیاتوالي له امله په دې وروستیو کې په ننګرهار، کندز، هرات او لوګر ولایتونو کې لسګونه ملکي کسان، چې ښځې او ماشومان پکې شامل دي؛ په شهادت رسېدلي دي. پر ملکي اهدافو د یادو هوایي بریدونو زیاتوالی په حقیقت کې د امریکا له لوري د جنګ پر وحشت او شدت دلالت کوي؛ نه پر هغه سوله چې تل یې د عوام غولونې لپاره زمزمه کوي. له دې امله هغه سوله چې امریکایان یې له جګړه مارانو څخه غواړي، د "ترهګرۍ او افراطیت" پروړاندې د جګړې له لارې راځي او جګړه ماران اړ دي چې د سولې لپاره د امریکا هر ډول شرطونه ومني. پر دې سربېره د ملګرو ملتونو د سازمان د وروستي راپور له مخې د ۲۰۱۷ کال په شپږو لومړیو میاشتو کې په هوایي عملیاتو کې د غیر نظامیانو تلفات د ۲۰۱۶ کال د شپږو لومړیو میاشتو په پرتله ۴۳ سلنه زیاتوالی ښیي.

یاد ناوړه حالت چې ملکي خلک یې له خاورو سره خاورې کړل، خو بې غیرته حکام غلي ناست دي او پر خولو یې د چوپتیا د ټاپې په وهلو سره د خپل حاکمیت پر بقا فکر کوي. حال دا چې څه موده مخکې په کشمیر کې د څو هندي پوځیانو د مړینې لپاره د افغانستان ذلیلو حکامو د هندي قربانیانو کورنیو ته د خواخوږۍ زیات پیغامونه ولېږل. د دې ترڅنګ، د دولت ویندویان او بلندګویان په ډېره بې شرمۍ او سپین سترګۍ سره هڅه کوي چې د امریکا او ناټو جنایتونه په مختلفو بڼو توجیه کړي، چې دا ټول د جان کېري له دولت څخه د خلکو د نفرت او کرکې لامل شوي دي.

مزدور حکام د یادو څرګندونو له لارې هڅه کوي، تر څو په عوام غولونې سره، د خلکو ذهنیت له ملکي تلفاتو او د دولت پروړاندې د نفرت له زیاتوالي څخه پر نظامیانو، پانګونه او د دولت پروړاندې د نفرت کمښت ته را واړوي. دا په داسې حال کې ده چې د افغانستان خلک په تېرو ۱۶ کلونو کې د دې شاهدان دي چې ملیاردونه ډالره د امریکا له لوري پرې مصرف شوي دي او نه یوازې دا چې د دوی د ژوند په وضیعت کې یې بدلون نه دی راوستلی؛ بلکې د هغو افغانانو سر تېرو د ژوند په وضیعت کې، چې د امریکا او ناټو د جګړې په بېلا بېلو جبهو کې، د امریکا په نیابت جنګېږي، هم څه ښه والی نه لیدل کېږي او ورځ تر بلې یې تلفات

زیاتېږي. ان په روغتونو کې د یادو پوځونو د ټپیانو پر درملو او په یخچالونو کې یې پر جسدونو پراخ ګټور تجارت روان دی؛ داسې چې په میاشتو میاشتو د یادو پوځونو جسدونه په یخچالونو کې ساتل کېږي او مسولینو ته د رشوت له ورکړې، یې وروسته جسدونه د هغوی کورنیو ته سپارل کېږي.

همدا راز د نظامي پوځیانو ټپیان پر دولت د درملنې حق لري، خو د درملنې په لړ کې د ټپیانو خپلوان مجبورېږي، چې اړوند درمل له بازاره وپېري؛ په داسې حال کې چې دولتي درمل، چې د پوځ د ټپیانو مسلم حق دی، په بازار سیاه (تور بازار) کې پلورل کېږي. یاد حالت د دولت له بې پروایۍ او فساد څخه دی، چې د پوځیانو د کورنیو د نهیلۍ لامل شوی دی او له بلې خوا یې په امنیتي جلب او جذب کې خورا ډېر کمښت راوستلی دی او برعکس له جګړې څخه یې د تښتېدونکو او شورشیانو ته د تسلیمېدونکو تعداد هم په بې ساري ډول زیات کړی دی.

له بلې خوا، افغانستان ته د زیاتو سرتېرو لېږد د امریکا د نوې ستراتیژۍ یوه برخه ده، چې غواړي په تېره ۱۶ کلنه جګړه کې د طالب جګړه مارانو او نورو ډلو پر وړاندې بریالی شي. د امریکا د دفاع وزیر جیمز ماتیس ویلي دي: امریکایي ځواکونه د افغانستان د امنیتي ځواکونو پر روزنې سربېره له دښمن سره د مبارزې حق هم لري. په داسې حال کې چې دا همغه موضوع ده چې امریکایي ځواکونو د کابل - واشنګټن ننګین تړون، پر خلاف یو ځل بیا په افغانستان کې پر ترور، وحشت او جنایت لاس پورې کړی دی او په زرګونو ځله یې دا موضوع ثابته کړې، چې امریکا د تړون هېڅ عهد ته ژمنه نه ده پاتې او د یاد هېواد د لوړ پوړو چارواکو په روان کې یوازې؛ نظامي ګري، وحشت او د اسلامي خاورو اشغال او استعمار پراته دي او بس.

په دې ورځو کې په افغانستان کې د امریکا نوي دروغ بربنډ شول، هغه هم دا چې مخکې له دې څخه امریکا په افغانستان کې د خپلو ځواکونو شمېر ۸۴۰۰ تنه اعلانوه، خو د اګست پر ۳۰مه د امریکا د دفاع وزارت اعلان وکړ چې اوس په افغانستان کې ۱۱زره امریکایي ځواکونه شته دي. د دې تر څنګ په افغانستان کې د خصوصي کمپنیو او استخباراتي کړیو په اډانه کې، لسګونه زره نور عسکر هم شته دي؛ خو بیا هم څوک نشته چې د اشغالګرانو د سرتېرو د رواغجن تعداد په اړه او د مسلمانانو له بې ارزښته وینې تویېدنې پوښتنه وکړي او یا هم له مزدورو حکامو څخه د ذلیلانه غولونو په اړه د وضاحت غوښتنه وکړي.

په پایله کې؛ ټول ذکر شوي موارد د غدارو حکامو په رسوایۍ پسې رسوایي او خیانت پسې خیانت ښیي. هغوی پرته د دښمن د جنایتونو له توجیه کوونکو، د استعماري برنامو له پلي کوونکو او په سیمه کې د امریکایي نظامي پروژې د پر مخ وړونکو مامورینو څخه بل څه نه دي. د هغوی هر عمل له عوام غولونکي سیاست څخه سرچینه اخلي او تل د امریکا په ګټه عامه افکار غولوي او خپلو خلکو ته دروغ وایي. نو ځکه باید د یادې خاورې مسلمانان د دوی په خیانت پسې خیانت درک کړي او تل د تغیر لپاره مبارزه وکړي، تر څو ډېر ژر دا د پېړۍ غداران له قدرته راوپرځوو ان شاءالله.



# د ژوند څو ترخه حقیقتونه

## راځئ چې پند ترې واخلو!

**محمد خالد**

ګرانه وروره !

آیا کله دې پام کړی چې د کرکټ سیالۍ ستا د ارزښتمن عمر ۹۰ دقیقې وخت نیسي؟ ځینې بهرنې سیریالونه ستا د ژوند ۶۰ دقیقې وخت او ځینې فلمونه ستا او ستا د هیوادوالو، ځوانانو وروڼو او پیغلو انجونو لپاره دومره په زړه پوری وي چې د هغوي د نه راګرځېدونکي عمر څخه هره ورځ ۱:۳۰ ( یو نیم ساعت) وخت ضایع کوي، خو ددې ټولو سره سره بیا هم دا کار کم ښکاري.

خو لمونځ زما او ستا د عمر یواځې او یواځې ۵ دقیقې وخت نیسي، په داسې حال کې چې دا کار د ځینو لپاره درونډ ښکاري، بل لوري ته جنت د مؤمنانو تلپاتې هستوګنځای دی او جهنم هم همداسې دی.

راځئ د یو ځیرکه مسلمان په توګه ! د ژوند د څو نورو ترخو حقیقتونو په اړه یوه شېبه له ځان سره فکر وکړو .

آیا کله دې له ځان سره فکر کړیدی چې په What'sApp (واټ ساپ) کې ستا د ملګرو شمېر له ۳۰۰ تنو څخه هم زیات دی او د Face book په مجازي نړۍ کې له ۱۵۰۰ ( یو نیم زر) پېژنده او ناپېژانده دوستانو سره اړیکي اری؟

ستا د جیب په شخصي موبایل کې له تا سره د سلګونو ملګرو نومونه او شمېرې موجودې وي او کله چې ته په کوڅه کې روان یې؛ نو له ۵۰ څخه د زیاتو ملګرو سره به ستا د سلامونو تبادله او روغبړونه وي، خو آیا تا کله دا فکر هم له ځان سره کړیدی چې په سختیو کې بیا یواځې یو ملګری له تا سره مل وي؟

که ستا جنازه وي؛ نو یواځې ستا نژدې خپلوان او دوستان به ستا په قبر خاوری شیندي، دا قبر ستا لپاره کېندل شوی او یواځې ته به دې خاورو ته سپارل کیږی او ستا د تدفین وروسته دا نور ټول له تا څخه بېرته ستنیږي. شاید دا ستا لپاره ډېره حیرانوونکي وي، خو دا څه د حیرانتیا خبره نده، بلکه دا د همدې تېرویستونکې دنیا یو څه ترخه حقیقتونه دي چې ډېر ورڅخه ناخبره او بې پروا دي. راشه! یو ستر حقیقت درتهووایم او هغه دا چې: تاته ستا له لمانځه پرته بل هیڅ څه ګټه نشي در رسولی.

کله چې تا د قرآن عظیم الشان پر مخ ګردونه لیدلی دي، آیا له ځان سره دې یوه شېبه اوښکې توی کړیدي؟

په داسې حال کې چې پرته له کوم شرعي عذر څخه د قرآن عظیم الشان له دری ورځو نه زیات پرېښودلو ته د قرآن هجر




(پرېښودل) وايي؛ نو آيا غواړې چې د همدې هاجِر (پرېښودونکی) انسان په ډله کې شامل شې؟

دا پورته خبرې مو د همدې لپاره وکړې چې شايد د غفلت پر ځای د بيدارۍ نښې پر مونږ کې را څرګندې شي، مړه احساسات او ولولې مو راوپارېږي او شايد دا څو خبرې يوه ورځ دزمونږ په ژوند کې جزري بدلون راولي او پند ترې واخلو، لکه چې الله تعالی (جلت عظمته) فرمايي: (وَ ذَكِّرْ فَإِنّ الذِكْرى تَنْفَعُ الْمُؤْمِنِيْنَ) سورة الذاريات ۵۵ آيت

ترجمه: او پند ورکوه ! پس همدا پند (تذکير) مؤمنانو ته ګټه رسوي.

مونږ څومره په عجيبه نړۍ کې ژوند کوو چې هره ورځ پکې د جنازې اعلانونه او خبرونه اورو، ډېر انسانان له مونږ څخه مخکې شول او مونږ هم ورپسې يو، د يوه دوست لا د تکفين او د تدفين څو ورځې نه وي تېرې شوي چې بل ورپسې د دې فاني نړۍ سره خدای په أماني وکړي. د مرګ خبرونه مو داسې تر غوږو کيږي، لکه: په شېبو شېبو ورېدونکي باران کې چې د څاڅکو شرکهار موتر غوږو رسي.

ګرانه دوسته !

د مرګ لاملونه هم بې شمېره دي، هرو ورځ وينو چې يو دوست مو په سفر کې د مرګوني ټکر له کبله خپل ژوند له لاسه ورکوي، بل په روغتون کې د مرګونو دردونو سره خپله ساه ارواح ښنونکي ذات ته سپاري، درېيم وينو چې روغ رمټ به په لاره روان وي خو د زړه د سکتې له کبله به د ساه کښنو انسانانو له ډلې څخه جلا او د خاموشو انسانانو په چم کې به مېشت او د ابدي خوب پر خاورين بستر به پرېوزي.

بل لوري ته ډېر هيوادوال مو د ورځينو بمي چاودنو او هوايي توغنديو له کبله پر ابدي مرګ محکوم شول او له بده مرغه دا لړۍ تر ننه هم روانه ده.

بالآخره مونږ ټول به دا نړۍ د خپلو ځواني مرګو آرمانو سره پرېږدو او د نيمه خوا او ناسپړلو هيلو سره به د خپلو ورونو او دوستانو په لاسونو تورو خاورو ته ورسپارل کيږو او دا هم لرې نده چې يوه وخت به زما او ستا هغه ورځ هم رانژدې شي؛ نو د داسې يو غزېدلي او اوږد سفر لپاره پوره چمتووالی ونيسه چې تللی کسان پکې بېرته نه راستنيږي.

په پای کې د خپلې عاجزۍ لپې پورته کوو او دعا کوو چې: (اللهم آتنا في الدنيا حسنة وفي الآخرة حسنة و قِنا عذاب النارِ). لوی ښتن تعالی دې مونږ ته په خپل پاتې ژوند کې ايماني استقامت او ثبات را په برخه کړي او د جهنم د سوزونکي او لمبې وهونکي اور څخه مو دې په امان کې وژغوري.

په لاالهانده ژوند کې ستاسې د لا بريا په هيله !



# د ځلورو شهیدانو ورور

# شهید محمد طیب تقبله الله

لیکوال نصیب ځدراڼ

**پېژندنه:**

شهید محمد طیب په ۱۹۷۱ م کال کې د کندهار ولایت د ارغستان ولسوالۍ په "دامند بند" کلي کې په یوه مجاهده، دین دوسته او متدینه کورنۍ کې زیږېدلی و.

دی په قوم الکوزی وو او پلار نوم یې ملا صالح محمد و.

د ملا صالح محمد لس ځامن وو چې محمد طیب یې شپږم ځوی و.ابتدائی زده کړې یې د خپل کلي له جومات څخه پیل کړې ، په شل کلنۍ کې یې د قران کریم حفظ مکمل کړ، وروسته یې د لوړو دیني زده کړو لپاره ملا وتړله چې تر وړې دورې پورې یې ورسول.

**د شهید محمد طیب د کورنۍ بې ساري قرباني**

شهید محمد طیب د هغې بختورې کورنۍ څخه و چې د روسانو د یرغل په وړاندې یې هم بې ساري قرباني ورکړې دي.

یوه بېلګه یې د شهید محمد طیب د دوو مشرانو وروڼو (شهید قاري محمد ظاهر او شهید محمد قاسم تقبلهم الله ) ده چې په یوه ورځ او یو ځای شهیدان شوي دي.

د روسانو لویه قوه له کابل څخه کندهار ته روانه وه، د قلات ولایت جلدک سیمه "ملتني په خوله" کې د اتلو مجاهدینو له کمین او مقاومت سره مخ شوه، د دښمن نظامي قوت زیات وو او مجاهدینو هم په کمزورو وسایلو خو د ایمان په سرشاره جذبو سره په میدان کې خپل شجاعت او مېړانه وښودله او د روسانو قوه یې له ماتې او شکست سره مخ کړه، په دې جنګ کې ( قاري محمد ظاهر او محمد قاسم تقبلهم الله ) دواړه یو ځای خپل سپېڅلي ارمان شهادت ته ورسېدل او د شهادت جامونه یې نوش کړل، د دوی له شهادت نه وروسته د دوی کشر ورور (محمد نظر) د خپلو مشرانو وروڼو پر پله پل کېښود او مسلسل درې کاله یې د جهاد سپېڅلې مبارزې ته دوام ورکړ چې بلاخره د معروف ولسوالۍ په سالیسون سیمه کې د لیلن د لښکر په جنګ کې په شهادت ورسید.

د دوی د دریوو وروڼو له شهادت نه وروسته محمد سالم د دوی مبارزه په مخ روانه کړه او د ارغستان ولسوالۍ د ( ریګ ) په سیمه کې یې یوه سترګه په شهادت ورسیده او بیا یې د طالبانو د تحریک په وخت کې دوهمه سترګه هم له لاسه ورکړه.

## د امارت اسلامي د واکمنۍ پر مهال جهاد

کله چې امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ اللَّهُ د اسلامي نظام د حاکمیت لپاره د مفسدو ملیشو په خلاف جهاد پیل کړ نو یو ځل بیا د ملا صالح محمد د کورنۍ څخه یو بل ځوان ( شهید محمد طیب ) د خپلو مشرانو وروڼو په پل قدم کېښود او د امارت اسلامي له مجاهدینو سره یې یو ځای د تخار او بامیانو په سیمو کې جهاد پیل کړ. شهید حافظ محمد طیب په دغه وخت کې د عمر په لحاظ کشر و خو د خپلې تقوی، صداقت، شجاعت، امانتداري او پوهې له مخې یې ډیر زر د مشرانو وروڼو ځای ونیو او په ډیرو فتوحاتو کې یې برخه واخیسته.

## ★د صلیبیانو په ضد جهاد

کله چې د امریکا په مشرۍ د نړیوالو طاغوتیانو د یرغل په نتیجه کې اسلامي امارت سقوط وکړ، ډیرو خلکو د مادیاتو او چوکیو په بدل کې خپل ایمانونه وپلورل؛ یقیناً د ایمانونو د امتحان وخت و، یو طرف ته د کفارو د طاقت او لوی قوت رعب و بل طرف کفار په دې لټه کې وو چې افغانان د پیسو، مادیاتو او چوکیو په بدل واخلي تر څو ځان په آسانۍ سره خپلو اهدافو ته ورسوي.

په دې سخت امتحان کې د ځینو متدینو افغانانو په څېر شهید حافظ طیب هم بریالی شو او د کورنۍ د مشرانو غونډې یې له یرغلگرو څخه د وطن د دفاع دنده په غاړه واخیسته، د امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد په امر یې په امریکایانو او د هغوی په گوډاکیانو بریدونه پیل کړل.

حافظ محمد طیب ته د معروف ولسوالي د جنگ په کرښه کې نظامي قومانده ور وسپارل شوه او د ډلگۍ مشر په حیث یې مبارزه پیل کړه.



## په جهادي مزل کې زخمي کیدل او مهمې کارنامې

په ۲۰۰٦ میلادي کال کې د کابل کندهار په لویه لار شهید محمد طیب له خپلو ملگرو سره یو ځای په دښمن کامیاب برید وکړ، دښمن ته پکې درونډ زیان واوښت او شهید محمد طیب هم په دې کمین کې ټپي شو خو زخمونه یې په جهادي مزل کې خنډ جوړ نشول او جهادي مبارزې ته یې دوام ورکړ.

د شهید محمد طیب د لویو کارنامو څخه یوه دا هم ده چې کله د دښمن لویه قوه د کندهار څخه معروف ته روانه وه، شهید محمد طیب د (وام) په سیمه کې له خپلو ملگرو سره یوځای کمین ورته ونیو او د دغه بریالي کمین په ترڅ کې یې د دښمن دغه لویه قوه ماته کړه چې ۱۸ عسکر یې ووژل او درې موټر یې تخریب کړل.

## شهادت

په ۲۰۱۲ میلادي کال کې شهید محمد طیب یوې خواته په



جهادي سفر روان و چې د معروف ولسوالۍ په سالیسون سیمه کې د وحشي دښمن په یوه ناځوانمردانه کمین کې ګېر شو او خپل سپېڅلي آرمان شهادت ته ورسېد او د دغه ارمان خوږ جام يې په سر واړاوه.

شهید محمد طیب شېر بچیان (درې ځامن او درې لونه) او د قربانۍ په سرشاره جذبو مسته قوي جبهه چې اتل او نیګیالي مجاهدین لري شاته پرېښودل.

## د پنځم ورور حضرت عمر شهادت

د شهید محمد طیب له شهادت نه وروسته د نوموړي کشر-ورور مولوي حضرت عمر د جهادي مسؤلیت بیرغ پورته کړ،شهید مولوی حضرت عمر د خپلو مشرانو ورونو غوندي د شجاعت تاریخ پرېښود او يوه کارنامه يې د معروف ولسوالۍ د "جملي" په پوسته فاتحه برید وو چې د پوسته يې فتحه کړه او غنیمتونه يې هم تر لاسه کړل،دویم ځل بیا معروف ولسوالۍ کې د ملګرو سره د دوښمن له طرفه محاصره شو، خو د سخت جنګ نه وروسته يې ټول ملګري د محاصرې څخه خلاص کړل ،محاصره يې ماته کړه او دوښمن يې تیښتې ته مجبور کړو، د پنځه کلنې بریمنې مبارزې نه وروسته د ۲۰۱۷ میلادي کال د رمضان المبارک په ۲۷مه نېټه په داسې حال کې چې د حفظ د فراغت يې یو کال شوې وه او دغه يې د واده اول کال و... د جمعې په شپه د معروف سیمې په رشید قلعه کې د دښمن په لاس په ډېره ناځوانمردانه توګه په شهادت ورسېد او د خپلو مشرانو ورونو له رنګین کاروان سره یو ځای شو.

د شهید محمد طیب دوه د اکا ځامن (شهید فضل محمد زبیر او نعمت الله شریف) هم د امریکایانو ضد سپیڅلي جهاد کې په شهادت رسیدلي دي.

شهید محمد طیب ټوله کورنۍ د قربانۍ او شهادتونو څخه سرشاره او له ویاړه ډکه کورنۍ ده.

له یوه کور نه د پینځو ورنو شهادت واقعتاً نه هیریدونکي قرباني ده.د نن سبا د دنیا پرستۍ په زمانه کې د یوه سپیڅلي هدف لپاره د دومره عظیمې قربانۍ مثال نه پیدا کیږي.

شهیدان د امت محسنان دي، د شهیدانو برکت وو چې اول روسان مات شول او اوس د امریکایي یرغلګرو نجس ټغر زموږ د ګران وطن څخه په ټولیدو دی، هر شهید ځان ته د اتلولۍ کیسه لري چې باید په تاریخ کې په زرینو کرښو ولیکل شي.

شهیدان هغه خلک دي چې خپله زندګي زموږ د ښه راتلونکي لپاره قربانوي، د ژوند ټول خوندونه له یو جهان ارمانونو سره بخښي او دوی د ابدي ژوندون خوښیو ته ورمېلمانه کیږي.

الله تعالی دې د شهید محمد طیب د کورنۍ د اتلو شهیدانو قربانۍ قبولې کړي او د هغوی سپیڅلي ارمانونه پوره کړي د کوم لپاره چې دوی قربانۍ ورکړي.

آمین




# د امریکا نوې افغان تګلاره؛

## په نوي بوتل کې زاړه شراب

د ملي یووالي حکومت له جوړېدو وروسته، د امریکا متحده ایالاتو له افغانستانه د خپلو سرتېرو د ایستلو پروګرام څو ځله بدل کړ؛ خو کله چې په امریکا کې ډونالډ ټرمپ واک ته ورسېد، د افغانستان د جګړې په اړه د نوموړي پخوانیو ضد او نقیض دریځونو او اوسنۍ دوه-زړۍ افغان حکومت اندېښمن کړ. دا اندېښنه بې‌ځایه هم نه وه او ټرمپ په افغانستان کې د خپلو سرتېرو په پرېښودلو او ایستلو کې دوه‌زړی و. همدا لامل و، چې د امریکا نوې تګلاره اته میاشتې وځنډېده.

تېره اونۍ بالاخره د افغانستان او سوېلي اسیا لپاره د ډونالډ ټرمپ د حکومت تګلاره اعلان شوه، چې له مخې یې امریکا په افغانستان کې د اوږده مهال پاتې کېدو لاره خپله کړې ده او پر جګړې یې ټینګار دی. همدا لامل دی، چې د افغان حکومت د تاوده هرکلي ترڅنګ یې د مخالفت غبرونه هم له ځان سره لرل. د دغې تګلارې په اړه ویلی شو، چې «نوې خو زړه تګلاره ده»؛ مګر بیا هم د افغانستان او سیمې په اړه د ټرمپ د ادارې له‌خوا یو څه بدلونونه پکې تر سترګو کېږي. پوښتنه دا ده، چې ټرمپ د امریکا په پخوانۍ تګلاره کې کوم مهم بدلونونه راوړي؟ او دا تګلاره به د سیمې، په ځانګړې ډول افغانستان وضعیت کوم لوري ته بوځي؟ دا او دې ته ورته پوښتنې د دې اونۍ د تحلیل په لومړۍ برخه کې څېړل شوې دي.

د تحلیل په دویمه برخه کې په هېواد کې د کانونو وضعیت، ناقانونه کیندنو او په دغه سکتور کې شته اداري فساد په اړه لولئ. یو شمېر راپورونه ښیي، چې په دغه سکتور کې د پراخ اداري فساد له کبله د افغانستان کانونه په ناقانونه توګه ایستل کېږي او لوټ کېږي او دا بهیر لا هم روان دی. دا چې په کانونو سکتور کې فساد په کومه کچه دی او د مخنیوي لارې چارې یې څه دي؟ هغه پوښتنې دي، چې د تحلیل په دې برخه کې ځواب شوې دي.

د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ د افغانستان او سوېلي آسیا په اړه د امریکا نوې تګلاره د اګست په ۲۲مه (۲۰۱۷) اعلان کړه. د امریکا دا تګلاره له ۸ میاشتې اوږده انتظار وروسته داسې مهال اعلان شوه، چې د امریکا د ځنډېدونکې تګلارې په تړاو، ډېر بحثونه راپورته او پروپوزلونه وړاندې شول. د بېلګې په توګه له افغانستانه د بشپړ وتلو، افغان جګړه خصوصي کمپنیو ته سپارلو او د پوځیانو د زیاتولو طرحې وړاندې شوې.

د افغانستان لپاره د ټرمپ د تګلارې اعلان، په هېواد کې دننه او بهیر موافق او مخالف غبرګونونه هم له ځان سره لرل. د افغانستان ولسمشر اشرف غني او اجرائیه رئیس ډاکتر عبدالله یې تود هرکلی وکړ؛ خو پخواني ولسمشر حامد کرزي دا تګلاره وغندله او ویې ویل، چې په دې تګلاره کې د سولې پر ځای د وژنو او جګړې پر دوام او پراخېدو ټینګار شوی. د دې ترڅنګ طالبانو هم د یوې اعلامیې په خپرولو سره د ټرمپ تګلاره د افغانستان د «اشغال» دوام بللی او ګوتڅنډنه یې کړې، چې ترڅو یو امریکایي پوځي هم په افغانستان کې وي، دوی به خپلې جګړې ته دوام ورکړي.

پاکستان او هند هم پر دغه تګلاره غبرګون ښودلی. د پاکستان د بهرنیو چارو وزارت خبرپاڼه کاږي، چې امریکا د پاکستان پر قربانیو سترګې پټوي او دوی یې نهیلي کړي دي. خو هند بیا د دغې تګلارې هرکلی کړی او ویلي یې دي، چې دوی هغه پرېکړه غوښته، چې ټرمپ کړې ده.

دا چې د سوېلي آسیا او افغانستان لپاره د ډونالډ ټرمپ د تګلارې عمده ټکي څه دي، له پخوانۍ تګلارې سره یې څه توپیر دی، د واشنګټن دا افغان تګلاره د امریکا د دوو پخوانیو ولسمشرانو له تګلارو سره څه توپیر لري، او بالآخره آیا د امریکا دغه نوې تګلاره به افغانستان ته امنیت او سوله راوستلای شي؟ هغه پوښتنې دي، چې دلته مو ځواب کړې دي.

## د واشنګټن پخوانۍ افغان تګلاره

له ۲۰۰۱ کال وروسته د امریکا متحده ایالات په افغانستان کې نېغ په نېغه ښکېل دي. همدا لامل دی، چې په تېرو ۱۷ کلونو کې افغانستان د امریکا د بهرني سیاست یوه مهمه برخه وه. د امریکا د همدغه سیاست له کبله وه چې جورج ډبلیو بُش په افغانستان کې جګړه او د دولت-جوړونې پروسه پیل کړه. له ۲۰۰۴ کال وروسته بُش په افغانستان کې د امریکایي سرتېرو د زیاتولو پروسه پیل کړه؛ خو د دویمې دورې په پای کې یې افغانستان نور د ۲۰۰۱-۲۰۰۴ کلونو افغانستان نه و پاتې؛ بلکې جګړې او ناامنیو زور پکې اخېستی و. طالبان د یوه سیاسي او نظامي ځواک په توګه ومنل شول او په قطر کې د طالبانو د سیاسي دفتر پر پرانېستلو خبرې اترې پیل شوې.

د امریکا بل ولسمشر بارک اوباما تر ډېره د افغانستان او عراق د جګړو پای ته رسولو د شعار په زور د ولسمشرۍ ټاکنې وګټلې. اوباما په ۲۰۰۹ کال کې خپله افغان تګلاره اعلان کړه، چې له مخې یې په افغانستان کې د امریکایي سرتېرو د زیاتولو ترڅنګ د دوی د بېرته وتلو مهالوېش هم اعلان شو. دغه راز له افغان لوري سره پر اوږدمهاله ستراتېژیک او امنیتي تړونونو هم خبرې اترې پیل شوې. که څه هم اوباما ونه شو کړای چې له حامد کرزي سره امنیتي تړون لاسلیک کړي؛ خو د ملي یووالي حکومت له جوړېدو سره، په ۲۴ ساعتونو کې دننه امریکا له افغان لوري سره امنیتي تړون لاسلیک کړ.

د امریکا د دغو دوو ولسمشرانو افغان تګلارو په افغانستان کې د سرتېرو پر زیاتولو ټینګار کاوه؛ خو په ورته وخت کې د اوباما په تګلاره کې بیا د امریکایي سرتېرو بېرته ایستلو او تر ۲۰۲۴ کال پورې په افغانستان کې د امریکا ستراتېژیک راتلونکي ته هم ځای ورکړل شو.

## د افغانستان او سوېلي آسیا لپاره د ټرمپ تګلاره

که څه هم ډونالډ ټرمپ له ولسمشر کېدو وړاندې په افغانستان کې د امریکا پر تګلاره ډېرې نیوکې کولې؛ خو سپینې ماڼۍ ته له ننوتلو وروسته یې تر اتو میاشتو پورې د افغانستان په تړاو ډېرې کمې څرګندونې وکړې. په رسنیو کې هم د افغانستان په تړاو د ټرمپ څرګندونې ضد او نقیض منعکس شوې.

له اتو میاشتو اوږده ځنډ او انتظار وروسته د ټرمپ افغان او سوېلي اسیا تګلاره اعلان شوه. که څه هم ټرمپ، د افغانستان او سوېلي آسیا لپاره د امریکا په تګلارو کې انقلابي بدلون رامنځته نه‌شو کړای؛ مګر بیا هم که دغه نوې تګلاره له یوې خوا د امریکا د پخوانیو تګلارو دوام دی، نو له بلې خوا له تېرو تګلارو سره یو څه توپیر هم لري.

**د ټرمپ د وینا له متن څخه په څرګنده معلومېږي، چې د دغې سیمې لپاره د امریکا تګلاره به پر لاندې ټکو راڅرخېږي:**

لومړی؛ امریکا نور له افغانستانه د خپلو سرتېرو ایستلو د مهالوېش پروګرام ته د پای ټکی کېښود او په افغانستان کې یې خپل حضور له شرطونو سره وتاړه؛

دویم؛ په افغانستان کې د امریکا د پوځي حضور راتلونکی تت او مبهم ښودل؛

درېیم؛ د امریکا په افغان جګړه کې د سرتېرو پر زیاتولو ټینګار؛

څلورم؛ د پاکستان پر ضد تونده لهجه کارول؛

پنځم؛ له طالبانو سره جګړه، خو د خبرو اترو دروازه هم پرانیستې پرېښودل؛

شپږم؛ په افغانستان کې دهند د ونډه او رول زیاتول.

## د ټرمپ په دريځ کې د بدلون لاملونه

د ټرمپ له پخوانیو دریځونو داسې شونتیا زیاته وه، چې ټرمپ به له افغانستانه د خپلو سرتېرو د ایستلو دریځ ولري او په دې اړه د نوموړي ځینو دریځونو او څرګندونو له افغان حکومت سره هم دا اندېښنه پیاوړې کړې وه؛ خو دا چې ولې ټرمپ په افغانستان کې د اوږده مهال پاتې کېدو دریځ خپل کړ، تر ډېره لاندې دوو لاملونو رول پکې درلود:

د امریکایي جنرالانو او سلاکارانو ټینګار؛ ټرمپ په خپله وینا کې وویل، چې اصلا د ده لومړنی دریځ دا و، چې له افغانستانه به خپل سرتېري وباسي؛ خو څرګنده ده چې کله سړی په سپینه ماڼۍ کې د مېز ترشا کېني، پرېکړې بدلېږي. ټرمپ ته په افغانستان کې پر پاتې کېدو قناعت ورکړل شو او د نوموړي دریځ یې بدل کړ.

په سیمه کې د امریکا ګټو ته متوجه ګواښونه؛ افغانستان د روسیې او منځنۍ آسیا، ایران، پاکستان او چین ترمنځ پروت دی او جغرافیایي موقعیت یې د ډېر ارزښت وړ دی. له تېرو څو کلونو راهیسې په دغه سیمه کې یو شمېر بدلونونه هم راروان دي، چې له یوې خوا پکې د روسیې او امریکا ترمنځ د سړې جګړې بحث بیا سر راپورته کړی او په عملي ډول د اوکراین، جورجیا او سوریې په قضیو کې له یو بل سره مخ دي او له بلې خوا چین هم په سیمه کې خپلې دوې مهمې پروژې د وریښمو نوې لاره او د چین-پاکستان اقتصادي حوزې پیل کړې دي. د دې ترڅنګ چین هغه هېواد دی، چې امریکا یې تر ټولو زیاته پوروړې ده او اوسمهال د چین د جنوبي سمندرګي په قضیه کې هم د چین پرضد بلاک کې ولاړه ده.

د افغانستان طبیعي زېرمو ته د ټرمپ پام راړول؛ ځینو څېړنو په ډاګه کړې، چې افغانستان تر ځمکې لاندې کابو یو ټریلیون ډالرو په ارزښت طبیعي زېرمې، کانونه، ګاز، تېل او نوره شتمني لري. ویل کېږي چې څه موده وړاندې د کېمیاوي او فلزي توکو د تولید یوه ستر امریکایي شرکت لهخوا په دې اړه ټرمپ ته د معلوماتو ورکولو ترڅنګ، ولسمشر غني هم له ټرمپ سره په یوه ټلیفوني اړیکه کې د افغانستان طبیعي زېرمو ته د نوموړي پام راړولی و او داسې برېښي چې همدې چارې هم د نوموړي نظر بدل کړ او په دې فکر کې شو، چې دا شتمني څه ډول را ایستل کېدای شي او امریکا ترې څه ډول ګټه پورته کولی شي.

## د امریکا نوې تګلاره او پر سوله او امنیت یې اغېزې

په افغانستان کې د امریکا په تګلاره کې کوم انقلابي بدلون نه ترسترګو کېږي، بلکې تر ډېره هماغه زړه تګلاره ده؛ خو د امریکا د تګلارې د پورتنیو ټکو له امله ده چې په افغانستان کې به پر روانه جګړه او د سولې پر بهیر لاندې اغېزې وښندي:

لومړی؛ په افغانستان کې د امریکایي سرتېرو د زیاتولو له کبله به، ټرمپ د افغانستان هغه جګړه ونه شي ګټلی چې ده په خپله وروستۍ وینا کې شپږ ځله د «ګټلو» ټکی ورته وکاراوه. هغه جګړه چې سلګونه زره امریکایي سرتېرو ونه شو ګټلای، نو له دریو زرو نیولې تر پنځه زره پوځیانو پورې خو به یې هېڅمهال هم ونه شي ګټلی.

دویم؛ که څه هم د امریکا دا تګلاره او په ځانګړي ډول په افغانستان کې د امریکایي پوځیانو زیاتېدل به د افغان حکومت روحیه لوړه او د حکومت په اند، د امنیتي ځواکونو مورال "لوړ" کړي؛ خو د افغانانو لپاره به د جګړې او سولې په ډګر کې ډېرې بدې اغېزې ولري.

درېیم؛ په افغانستان کې د امریکایي سرتېرو مهالوېش نه ټاکل به نه یوازې دا چې د هېواد دننه جګړې ضد روحیه نوره هم پیاوړې کړي، بلکې په سیمهییزه کچه به هم د یو شمېر هېوادونو لکه چین، روسیې، ایران، پاکستان او منځنۍ اسیا هېوادونو اندېښنې وپاروي او ښایي له طالبانو سره به د دغو هېوادونو دیپلوماتیکي او پوځي مرستې هم زیاتې شي.

خبر

امریکایي شنونکی: افغانان کامل حق لري چې امریکایي عسکر ووژني

د امریکا یوه وتلي سیاسي فعال او شنونکي په یوه مقاله کې په افغانستان کې د امریکایي عسکرو په جنایاتو اعتراف کړی او ویلي یې دي چې افغانان د دې کامل حق لري چې امریکایي عسکر په نښه او ویې وژني.

د شرپورټ ټایمز په نامه یوې نشریې په یوه راپور کې د پوهنتون د استاد او دسیاسي چارو د مشهور څېړونکي د«دانارد دوایر» له قوله لیکلي : ډېر وخت وشو چې امریکایي ځواکونه په افغانستان او عراق کې د خلکو په وژلو اخته دي، داسې خلک چې هغه د واشنګټن امنیت ته هیڅ تحدید نشي پیښولی او نه یې په امریکا د حملې اراده شته دوی یې بې دریغه وژني.

دا امریکایي فعال وایي: زمونږ ځواکونه تیري ګر دي او د افغان ټبر هر بچی حق لري چې د امریکایانو پرضد دخپلې خاورې او ولس دفاع وکړي او هغوی ووژني.

د نوموړي امریکایي شنونکي په باور طالبان دسپتمبر د ۱۱ له حملو سره هیڅ اړیکه نلري او دا هسې یوه بهانه وه چې امریکایي اداري جوړه کړه

نوموړی ټینګار کوي؛ د افغانستان هر وګړی چې د امریکایانو لخوا وژل کیږي باید جنګي جنایت وبلل شي

«دانارد دوایر» وایي: «ښایي تاسو وواياست چې طالبان اوسمهال په امریکایي ځواکونو ولې بریدونه کوي؟ خو زه د بیلګې په ډول درته وایم چې که د چین په څیر یو بهرنی هیواد چې بې له کوم دلیل نه امریکایي ولس اشغال کړي، هغوی ته په خپله خوښه دولتي چارواکي مشران کړي او د هغوی فضا اوځمکه محاصره کړي نو که بیا امریکایان د هغوی پرضد پاڅون وکړي آیا هغوی به مجرمین وشمیرل شي؟



نومـــوړی همـــداراز وايـــي دا وضعيت په عراق او افغانستان کـې هم دی موږ په ډېره ظالمانه توګـه د هغـوی پـر دولتونـو حملـه وکـړه پداسې حال کې چې هغوی موږ تـه هيڅ ډول خنډ نه و..

نوموړي زياته کړې؛ داچې موږ ولې نشو کولی داجنګونه د طالبانو يا نورو مخالفينو لـه نظـره هـم و ارزوو، د هغوی له فکري زاويې يـې وڅېرو او دهغوی پيشنهادات واورو زه تعجب کوم.

د نوموړي په وينا، پـه همـدې حال کې هم موږ د داسـې وسـلوالو په وژلو مصروف يو چـې هغـوی د خپلې خاورې او ولس د دفاع پخاطر زمـوږ د اشـغالګر وجـود لـه کبلـه راپورته شوي دي.

امربکايي ادارتـو پـه صراحـت سره وويـل چـې د ښـوونيزو ادارو د يوې برخې پـه نشـتون سره بـه ۵۴ ميليارد دالره اضافي پيسې دجنـګ د لاګرميدو پخاطر ولګوي.

نومـــــوړی د يــــوه روسي سياستمدار وينا را اخلي چې ويـلي يـې دي «دډوډۍ نشـتون پـه ټولـو هيوادونو کې د جګـړې لمرنـی دليـل دی او ملتونه د حکومتونو لخوا پـه همدې جهالت کې پريښـودل شـوي ترڅـو د جنګونـو ماشـين ګـرم وساتي».

دا وتلـی امريکـايي څېړونکـی وايي: آن که موږ د وينو تويولو ډېـر تـږي هـم شـو د مـالي لحاظـه د جنګونو تداوم ممکن نده د ‹‹بمونـو مور›› په نامه لوی بم په افغانستان کې کارول او د ‹‹تاماهاک›› په نامـه ۵۹ توغندي په سوريه باندې توغول امريکا ته ميلونونه دالر تاوان درلود.

د دې سـياسي فعـال پـه وينـا چـې امريکـا اوس پـدې پوهيدلې چـې پـه افغانسـتان باندې يې د ۵ زرو لويو بمونـو اورول چـې زرګونـه بيګنـاه افغانان پکې ووژل شـول د دې باعث شوې ترڅـو ډېـر وطـن پرسـته ځوانـان لـه وسـلوالو مخـــالفينو (طالبـــانو) سره يوځای شي او امريکايي اشغال ته د تورې په څوکه ځواب ووايي.

د دانارد دواير په وينا؛ امريکـا په افغانستان کې د ټريلوينونو دالرو په مصرفولو سره له يو بن بسـت او داخلي او خارجي بې اعـتمادي سره مخ شوې او امريکايي جنرالان نبايد د خپلـو مطلبـي مشرانـو د اهـدافو ښکار شي څکه هغوی د امريکـايي ولس په وينو کې هم خير ويني.

دا وتلی امريکايي سياسـتمدار په آخر کې ټينګار کوي او وايي چـې د دې لوی جنګ اختتـام يـواځې پـه سوله کې نغښتی او په وينايي چـې لمړی بايد د امريکايانو لخوا نظـامي عمليات او بمبـارۍ ودرول شي بيـا دې د سولې خبرې اترې وشي او پـه پای کې دې ټول بهرني ځواکونه لـه افغانستان څخه ووځي.

# د تعلیم او تربیې او عالي
# تحصیلاتو کمیسیون تر اشراف لاندې

## د ۱۴۳۸ هـ ق کال د سالانه عمومي مشترک امتحان د نتائجو اعلان

سږکال په ۱۴۳۸ هـ ق، مطابق ۱۳۹٦هـ ش، مصادف ۲۰۱۷م کال د رجب المرجب په میاشت کې چې د هېواد په داخل کې او دغه راز په دیار د هجرت کې په مدارسو او دار الحفاظونو کې د افغانستان اسلامي امارت د تعلیم او تربیې او عالي تحصیلاتو کمیسیون تر اشراف لاندې سالانه عمومي مشترک امتحانات واخیستل شول، پکې اووه زره، پنځه سوه او څلور پنځوس(۷۵۵۴) تنو طالبانو او حافظانو برخه واخیستله او امتحان یې ورکړ.

چې پکې اوولس سوه او شپږ(۱۷۰٦) تنه د ممتاز، دوه زره، دوه سوه او اته ویشت(۲۲۲۸) تنه د جیّد جدّا، دولس سوه او اته اتیا(۱۲۸۸) تنه د جیّد او اووه سوه او دوه اتیا(۷۸۲) تنه د مقبول په درجو کامیاب شوي دي، او دولس سوه او دوه شپېته(۱۲٦۲) تنه نور چې په امتحاناتو کې یې برخه اخیستې وه، ناکام شوي دي.

باید ووایو چې عالمیه (لویه دوره)، عالیه(وړه دوره) او (متوسطه) درجو کې ټولې او پوره نمبرې(٦۰۰) دي او په ( اولی درجه ) کې ټولې او پوره نمبرې(۷۰۰) دي او په ( ابتدائیه درجه ) کې ټولې او پوره نمبرې (۵۰۰) دي.

په مدارسو کې د پوزیش اخیستونکي یعنې په اول، دویم او درېیم نمبرراغلي کسان په لاندې ډول دي:

په عالمیه درجه(لویه دوره) کې:

۱: فضل الرحمن هاشمي ولد مولوي محمد سعید هاشمي، ولایت پکتیکا، ولسوالي خیرکوټ، عمر(۲٤ کلن)، مدرسه : دار العلوم سرحد، پشاور، حاصل کړې نمبرې (٦۰۰) ممتاز اول نمبر.

۲: محمد سلیمان ولد محترم مولوي نور محمد «ثاقب» ولایت کابل، ولسوالي بګرامي، عمر(۲۰کلن)، مدرسه: جامعه دار العلوم حقانیه اکوړه خټک، نوشهره،حاصل کړې نمبرې (۵٤۵) ممتاز دویم نمبر.

۳: عبد المهیمن ولد عبد المؤمن، ولایت پنجشیر، ولسوالي پریان، عمر(۲۳کلن)، مدرسه: جامعه امداد العلوم صدر پشاور، حاصل کړې نمبرې (۵۳۰) ممتاز درېیم نمبر.

په عالیه درجه(وړه دوره) کې:

۱: اکرام الله ولد مرسلین، ولایت کونړ، ولسوالي شیګل، عمر (۲۱کلن) مدرسه: دار العلوم عربیه ګجرات، مردان، حاصل کړې نمبرې (٤۹۷) ممتاز اول نمبر.

۲: قدرت الله ولد خیر الله، ولایت کندهار، ولسوالي بولدک، عمر (۲٦کلن)، مدرسه: جامعه خیر المدارس، چمن بلوچستان، حاصل کړېنمبرې (٤۸۸) ممتاز دویم نمبر.



۳: بلال احمد امین ولد گل امین، ولایت میدان وردگ، ولسوالي چک، عمر (۲۰کلن) مدرسه: جامعه ابوهریرة خالق آباد، نوشهره، حاصل کړي نمبرې (٤٨١)ممتاز درېیم نمبر.

په (اولی درجه) کې:

۱: عبد الأحد ولد عبد الرؤف، ولایت فاریاب، ولسوالي المار، عمر(۱۹کلن)، مدرسه ریاض العلوم مسلم باغ کیمپ، کویټه بلوچستان، حاصل کړې نمبرې(٦٨٤) ممتاز اول نمبر.

۲: عابد منیر ولد الله نظر، ولایت فاریاب، ولسوالي المار، عمر (۲۰کلن)، مدرسه: ریاض العلوم مسلم باغ کیمپ، کویټه، بلوچستان، حاصل کړي نمبرې (٦٤٩) ممتاز دویم نمبر.

۳ـ عبد النافع ولد باریداد، ولایت کندهار، ولسوالي بولدک، عمر(٢٤کلن) مدرسه: جامعه اسلامیه علامه ټاون، چمن بلوچستان، حاصل کړي نمبرې (٦٤٧) ممتاز درېیم نمبر.

۴: غلام محمد ولد عبد الحکیم، ولایت پکتیا، ولسوالي زرمت،عمر(۲۱کلن) مدرسه: دار العلوم محمدیه خاکی مانسهره، خیبر پښتونخوا، حاصل کړي نمبرې (٦٤٧) ممتاز درېیم نمبر.

په (متوسطه درجه) کې:

۱: محمد امین ولد خدایداد، ولایت کندوز، ولسوالي دشت ارچي،عمر (١٤کلن)، مدرسه: دار الأیتام حضرت امام اعظم ابوحنیفة رحمه الله، نوشهره، خیبر پښتونخوا، حاصل کړي نمبرې (٥٥٤) ممتاز اول نمبر.

۲: صفي الله ولد محمد هاشم، ولایت ارزگان، ولسوالي خاص ارزگان، عمر(١٤ کلن) مدرسه: دار الأیتام حضرت امام زفر رحمه الله، چمن، بلوچستان،حاصل کړي نمبرې (٥٥١) ممتاز دویم نمبر.

۳: عبد الباقي ولد عبد العلي، ولایت کندهار، ولسوالي بولدک، عمر (۱۹کلن)، مدرسه: تدریس القران، چمن بلوچستان، حاصل کړېنمبرې (٥٥٠) ممتاز درېیم نمبر.

په (ابتدائیه درجه) کې:

۱: محمد عمران ولد قاري عبد الرحمن، ولایت ننگرهار، ولسوالي چپرهار، عمر (١٤کلن) مدرسه: دار الأیتام حضرت امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله، نوشهره، خیبر پښتونخوا، حاصل کړي نمبرې (٤٩٥، ممتاز اول نمبر.

۲: علي خان ولد حبیب الله، ولایت هلمند، ولسوالي گرمسیر، عمر(۱۰ کلن) مدرسه: دار العلوم ربانیه هلمند، حاصل کړېنمبرې (٤٩٥)، ممتاز اول نمبر.

۳: عباد الله ولد شهزاد گل، ولایت کونړ، ولسوالي چپه دره، عمر (۱۰کلن)، مدرسه: دار الأیتام حضرت امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله، نوشهره، خیبر پښتونخوا، حاصل کړي نمبرې(٤٩٣) ممتاز دویم نمبر.

۴: عبد الله ولد سید حسن، ولایت کونړ، ولسوالي چپه دره،عمر (۹ کلن)، مدرسه: دار الأیتام حضرت امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله، نوشهره، خیبر پښتونخوا، حاصل کړي نمبرې(٤٨٨) ممتاز درېیم نمبر.

یادونه: ددغو نوموړو او هم د نوور ټولو طالبانو تفصیلي نتیجه به مربوطه مدارسو ته ولیږل شي.

ان شاء الله تعالی

# خبر اونظر :

م عزیز

## ټرامپ : مونږ به په افغانستان کې ارومرو کامیابیږو

**نظر:** دغسې زمزمې ډبلیو بوش او تور اوباما هم زښته زیاتې وکړې خو مختوري اوسر کوب له سپینې ماڼۍ ووتل او ته خو هسې هم ایکسپایر یې دغه ارمان به خدای کول ګورته یوسې.

**اشرف غني:** مونږ د ټرامپ د نوې ستراتیژۍ هر کلي کوو

**نظر :** پلاستیکي مفکره ته به یې ځکه هر کلی کوې چې که دغه صلیبي ستراتیژي نه وي نو ستا مصنوعي عضلات او دوجود برخي ځای پرځای جامیږي ، خو یوه پوښتنه داده چې من حیث ولسمشر له تاسره خپل بادار ټرامپ د نوموړې ستراتیژۍ دجوړښت او اعلان په اړه کوم ټلفون هم شرنګولای وو که هغه دچا خبره دخیرک ادی یې هم نه وې شمیرلی؟

**امرالله صالح :** ټرامپ د افغانستان لپاره داسې ستراتیژي عیاره او جوړه کړې لکه دده په اند خدای بښلي احمدشاه مسعود چې په قبر کې رسم اوډیزاین کړې وي.

**نظــر :** هو ولې نه ، دمسعود ناپاکه اروا به حتما دامریکا دهغو عسکرو اوجنرالانو له اروا وو سره ګډه ګرزي راګرزي چې په افغانستان کې وژل شوي ،ځکه دهغه او امریکایانو دامو خه مشترکه اومتحده وه چې داسلامي شریعت د تطبیق مخه دې ونیول شي، دافغانانو ترمنځ دې دملي وحدت شیرازه نړیدلي وي او افغانستان دې یوملي مرکزي مستحکم نظام دتل لپاره ونه لري

**کومندان عطا :** مونږ ۴۰ کاله مبارزه اوجهاد کړی په پراشوټ کې افغانستان ته امریکایانو نه یو راښکته کړي دمټو په زور مو افغانستان له طالبانو اوروسانو ازاد کړی

**نظر :** دروسانو په خلاف دجهاد حقیقت اوشکل خودې د قهرمان ملي له ټړونو او معاملو څخه ښکاره ده چې دافغانستان نورو پرګنو او جهادي قومندانانو قربانۍ ورکولي خو ستا مشر له روسانو سره ګرم چرب ټړونونه اواوربندونه درلودل

طالبانو خو ستا قهرمان ملي له کابله داسې په شاوتمباوه چې ایله دپنجشیر اوخواجه غار په کومه سوړه اوغار کې راتم اوپناه یې وروړه او کومندان عطا که امریکایان نه وای راغلي اوهغوی په چورلکو کې دمزار په دښتو کې نه وای ښکته کړی اوس به د تهران په کومه تکیه خانه کې صرف جاروکش وی.

**حکمتیــار:** ټوله اروپا ۶۰۰ جنرالان نلري ،خو د پنجشیر یوه ولسوالی ۶۰۰ سوه جنرالان لري

**نظر:** همداسې خوده، ولې ته هم ترینه کم نه یې قلم، چمن زرداد وغیره وغیره وو ته تاهم له ډګرجنرالی کمې



السلام هم دالله پاک په امر گڼ بوتان دړي وړي کړي وو نود ګلبدین نیوکه بیا له طالبانو دمخه حضرت ابراهیم علیه السلام ته ډیره متوجه ده.

**سیاف:** څوک چې احمدشاه مسعود ته قهرماني ملي ونه وایی په ایمان دې وویریږي.

**نظر:** دالله تعالی فرمان خو داده چې څوک دمحاربو کفارو همکاراومددګاروي لکه خپله سیاف اویایې امثال چې داشغالګرو امریکایانو اوناټومرسته کونکي او دصف ملګري یې دي نوچې څوک ددغسي منافقینو په وړاندي جهادروا ونه بولي داسلام یوزره یې هم په وجود کې نشته .

**داکترعبدالله عبدالله:** واقعیت اینست که من بادیگارد احمدشاه مسعودبودم

**نظر:** واین هم یک حقیقت وواقعیت اشکار وهویدااست که حال غلام وجاسوس نمبر۱ روسها ، امریکا وناتو میباشید.

رتبې ندي ورکړي همدادې په وس پوره وه

**اسماعیل یون:** په افغانستان کې داسې دیمکراسی واکمنه ده چې چارواکي یې دخپل رعیت غوړونه قلموي وی

**نظر:** تا دطالبانو په نظام کبر کاوه اودرانه ګوزارونه به دې پرې کول چې په زوره په خلکو ګیری پریږدي اوس ستادخوښي په نظام اوجمهوریت کې خپل غوږونه ټینګ کړه چې څوک یې درنه پرې نکړي

دکابل ښار خطیبان اوملایان : دزمري دمیاشتی په ۲۸ ورځ یعني له انګریزانو څخه دهیواد دخپلواکي داخیستلو په خوشحالي کې دې دښځینه رقاصو اوسندرغاړو رقص اوسندري ناروا دي بائید مخه یې ونیولی شي.

**نظر:** پرځای ګام اونظر دی، خو درنو خطیبانو اوملاصاحبانو استقلال نمانځل په داسې حالت کې چې دهیواد حریت اوملي خپلواکي یرغمل شوي وی او دهماغه پخوانیو انګریزانو بچوړي ستابرخلیک په واک کې ولري اوزرګونه عسکریې دلته پراته وي داڅه حکم لري؟

**ګلبدین:** برما کې مسلمانان بودایان ځکه وژني چې طالبانو په خپل وخت کې دبودا بوتان نړولي وو

**نظر:** اول خو برما کې پرمسلمانانو مظالم دطالبانو له وجود څولسیزي وړاندي شروع شوي وو ، بله خبره داچې که دبوتانو ماتول دغه عامل کیدای شي نو له طالبانو زرګونه کلونه وړاندې حضرت ابراهیم علیه

# د ټرمپ ستراتيژۍ په روان جهادي مقاومت څه اغيز لرلای شي؟!

معين احمد (خروټی)

بالاخره امريکايي ولسمشر ډونلډ ټرمپ په افغانستان کې د امريکايي اشغال غزونې او تحميلي جګړې د تداوم په غرض خپله جنګي ستراتيژۍ اعلان کړه.

امريکايانو او په افغانستان کې د هغوي تحت الحمايه رژيم د دې جګړه ييزې ستراتيژۍ د تشهير او ترويج لپاره ډير ګرم تبليغات پيل کړل.

هغوي په دې تبليغاتو کې ياده ستراتيژۍ امريکايانو ته د ټولو ورپيښو ستونزو او امنيتي مشکلاتو يواځينی حل لاره وبلله ، او داسې يې وانمود کړه چې ګواکې د هغې په عملي کيدو سره به امريکايي پوځونه په افغانستان کې د هغوي خلاف روان مقاومت ټول شنډ او دا هيواد به په مکمل ډول تر خپلې واکمنۍ لاندې راولي.

خو لکه څرنګه چې له پيله د افغانستان تسخيرولو او لاندې کولو لپاره ټول امريکايي پلانونه په ناکامي محکوم وو دا جګړه ييزه ستراتيژي به يې هم همدسې په شکست او ناکامي محکومه وي.

د ستراتيژۍ په نوم د ټرمپ دغه احمقانه جګړه ييز اقدام ځکه په ناکامي محکوم دی چې د هغه اساس د وحشيانه جګړې پر دوام ښودل شوی دی.

هغه جګړه چې مالي لګښت يې ترېلونونو ډالرو او بشري لګښت يې د لسګونو زره امريکايي پوځيانو په مرګ ژوبلې منتج شوی خو نتيجه يې دا ده چې ټرمپ خپله په تر ټولو محفوظ ځای سپينې مانۍ کې د خونديتوب احساس نشي کولای.

دا يو منل شوی واقعيت دی چې افغانانو کله هم د يرغلګرو په وړاندې د تسليمۍ سر نه دی ټيټ کړی.

کله د امريکايانو د اشغال له پيله تر اوسه د هغوي کړنو ته وکتل شي نو هغوی په تيرو ۱۶ کلونو کې هم پر افغانانو ګلونه نه دي شيندلي، بلکې د اشغال له پيله يې همدغسې وحشت کارولی لکه احمق بوش چې نن د جنګي ستراتيژۍ په ترڅ کې د هغوی پر خلاف پيل کړی.

ولسي خلګ يې وژلي ، معصوم ماشومان يې شهيدان کړي ، پر سپو يې داړلي، د شهيدانو پر



وجسدونو يې اورونه بل کړي ، د هغوی د جنازو يې توهين يې کړي ، په بګرام، ګونتنامو او نورو سري زندانونو کې يې هغوي په وحشيانه ډول شکنجه کړي، مکمل کلي يې په ړندو بمباريو تباه کړي، روغتونونه، مسجدونه ، ښوونځي او د غم اوښادي مراسم يې په کراتو مراتو هدف ګرځولي.

او...

خو دا مريکاينو دغه ټول وحشت د غيرتمنو افغانانو په زړونو کې د انتقام جذبه او د مقاومت روحيه نوره هم پياوړې کړې ، د هغوی په مقابل کې تسليمي نه، بلکې لا د مقاومت سنګرونه فعال کړي او په ترڅ کې يې د هغوئ ډيرې ککرۍ رغړولې.

تر دې وروسته به هم د ټرمپ د ستراتيژۍ په پلمه د امريکايانو نوی وحشت هم هيڅ کله د افغانانو جهادي احساسات خاموش نه بلکې لا ګرم کړي .

ځکه د هغې پيل په عام وژنې او د اسلامي شريعت د مقدساتو په توهين پيل شوی، مذهبي مقدسات د افغان مسلمان ولس لپاره هغه سرې کرښې دي چې له هغوي څخه ادنی تنازل هم ورته له کفر سره مساوي عمل ښکاري.

د ټرمپ په ستراتيژۍ کې ټول هغه څه ځای شوي چې هغه د افغاني جهادي مقاومت مسببات ګڼل کيږي او کولای شو د ټرمپ دغه حماقت د افغاني مقاومت د ثانوي مرحلې پيلامه وبولو.

د دې پيلامې اثرات همدا اوس مونږ په جهادي جبهاتو کې عملا وينو.

د بګرام امريکايي اډې په دروازه کې پر امريکايي ځواکونو کامیابه استشهادي ګوزار، د کندهار په سربښندونکي بريد کې د هغوي د متعددو پوځيانو مرګ ژوبله او د هيواد په بيلابيلو برخو کې د ګوډاګي رژيم د سلګونو پوځيانو تسليمي ټوله د دې ښکارندويي کوي چې د جهادي مقاومت په وړاندې د ټرمپ جنګي ستراتيژي ناکامه او بې اثره ده .

د وخت تيريدل به نورهم دا خبره ثابته کړي چې مجاهد افغانان به د ټرمپ د ستراتيژۍ داسې مقابله کوي لکه د بوش د وحشيانه صليبي جګړې .

مونږ په دې باور لرو چې په دې تاريخي معرکې کې به بياهم برى د مسلمانو مجاهدينو په برخه وي ، ځکه هغوی مظلوم دي او د مظلومانو په اړه الله تعالى په خپل برحق کلام کې داسې فرمايلي دي :

«أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللَّهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ (۳۹) الحج

# دشهید قوماندان قاري محمد داؤد (خالد)

# ژوندته لنډه کتنه

ابوخالدحماد

څه وړه هستي خونه وه ؛که وواېوچې داخلاص،توکل، عزم، متانت،عاجزي،تقوی اوربښتونولی غوندي لوړو اخلاقو مجسم غرۍ چې ترخاوورولاندي شونودهغه په وصف کې به مو زياتوب نه وي کړی .

## زوکړه اوزده کړې :

قاري محمدداؤد(خالد) دحاجي لونګين زوی اودآمرالدين لمسی له نن څخه(۳۴)کاله وړاندي وروسته له هغې چې دهغه کورنۍ له روسي ښکيلاک څخه دپاکستان خيبرپختونخواه ايالت ته هجرت کړی ؤد کوهاټ په سيمه کې زيږيدلی چې بيا له هغه ځايه دپيښور دجلوزوکيمپ ته وکوچېدل .

نوموړي دلوګرازرزي ولسوالي دباغک کلي دشهاب الدين له جهادي اوشهيد پروره کورنۍ سره تړاؤ درلود.

قاري(خالد)په وړوکتوب خپل پلاردعظيم الشان قرآن دحفظ لپاره دمردان تحفيظ القرآن مدرسي ته داخل کړ،له حفظ پوره کولووروسته يې ددينې زدکړې پيليزکتابونه ترپنځمې درجې پورې دخپل تره زوی مولوي نعمت الله (سعيد) اوځينې نورو استادانوڅخه ولوستل، دپنځمې او شپږمې درجې کتابونه يې دپيښورپه پندوکي له محترم مولوي لطف الله(صديقي) اومولوي محمد (حقاني) صيب څخه،پاتي کتابونه يې په بيلابيلومدرسوکي لوستلي اووړه دوره يې له محترم شيخ صاحب رحيم الله (حقاني) څخه ديو ممتازطالب په توګه سرته رسولي وه .

## مسلکي فعايت اودندې :

شهيدقاري محمدداؤد (خالد) خپلوخوږواحساساتو،لوړهمت او سپيڅلو ارمانونودځ ۲۰۰۶زيږديزکال په شاوخوا کې د قوماندان قاري عبدالرحمن(کوم چې دپکتيکا، پکتيااوخوست بيلابيلوسيمو او ولسواليو؛ لکه زيږوک؛نکې، ارګون ،صبريو، څپوکنډو، سپيره او...ته تګ راتګ درلود) ترمشرۍ لاندي داسلامي امارت دسپيڅلي لښکرملګری کړچې هغه مهال يې څپوکنډو، سپيري، صبريو،نکې او...په تشکيلونوکي برخه درلوده اوڅه موده وروسته له شهيدمولوي محمد داؤد(جلالي) صيب سره يو ځای اوپه لوګراو ننګرهار کې يې جهادي فعاليت پيل کړچې بيادنوموړي اخلاص،لوړهمت ،جګړه ايزي تجربې اوښې وړتياته په کتودلوګر ولايت عمومي مسئول،خپل مشرشهيد(جلالي) صيب اودولايت په سطحه ځينې نورومسئولينوله لوري اود هغوی په اصراردسيمي د خورو ورو مجاهدينو ديوې ډلګۍ مشرې،د خوښې ولسوالي له لوري دولايتي کميسيون غړيتوب اولوګرته دنورو ولاياتوڅخه راتلونکو مجاهدينو درهبرې دنده هم ورډغاړې شوه اوتر وروستۍ ساپورې په پوره ميړانه،لوړ متانت اوديوزړه ورونکې مشرپه توګه خپلي ټولي دندې سمبال کړې .

## که چېرې ټول خلک راټول شي چې...

## عبد الله بن عباس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ ته

## د رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وصيت:

عن ابن عباس رضى الله عنه قـال: كنت خلف رسـول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يومـا فقـال يـا غـلام! إنـى أعلمـك كلمات: احفظ الله يحفظک، احفظ الله تجده تجاهک، إذا سألت فاسألله، و إذا اسـتعنت فاسـتعن بـالله، و اعلـم أن الأمة لو اجتمعت على أن ينفعوک بشىءٍ لم ينفعوک إلا بشىءٍ قد كتبـه الله لـك، و لـو اجتمعـوا علـى أن يضرـوک بشىءٍ لم يضـروك الا بشيءٍ قد كتبه الله عليک، رفعت الأقلام و جفت الصحف." [رواه مسلم]

له ابن عباس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ څخه روايت دی هغه وايي: چې زه يوه ورځ د رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شاته په سورلۍ باندې ناست ووم، هغه راته وويل: اې هلکه! زه تاته يو څو خبرې در زده کوم هغـه دا دي: تـه الله تعـالي يـادوه، الله تعالی به تا وساتي، ته الله يادوه، نو الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ به له تاسره په هر کار کې مرسته او نصرت کوي، کله چې څه غواړې نو يوائې له الله تعالي څخه يې غواړه، او کله چې مرسته غواړې نو يوائې له الله څخه يې غـواړه، او پـه دې خبره ځان پوه کړه، که چېرې په دې خبره باندې ټول خلك سره راټول شي چې تاته څه ګټه ورسوي نـو هغـوي تاتـه هيڅ ګټه نشي رسولی، پرته له هغې څخه چې الله تعالی ستا لپاره مقـرره کـړې وي او کـه چيرې پـه دې خبره سره راټول شي چې تاته ضرر در ورسوي نو دوي به تاته هيڅ در ونه رسولی شي، پرته له هغه ضرره څخه چې الله تعالي د تا لپاره مقررکړې دي، قلمونه پورته شوي دي او صحيفي وچې شوې دي.

عن ابن عمر ان رسول الله ﷺ قال: إن الله لا يجمع أمتي أو قال: أمة محمد ﷺ على ضلالة، ويد الله مع الجماعة، ومن شذ شذ إلى النار [رواه الترمذي]




مؤسس امارت اسلامی افغانستان مرحوم امیر المومنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله تعالی:

پیروزی واستقامت ما در قبال اشغالگران جهانی تنها برکت چنگ زدن به ریسمان الهی است، مجاهدین باید در چوکات شریعت اطاعت از الله تعالی، رسول الله صلی الله علیه وسلم وامیران خود را ادامه دهند، از نفاق، اختلاف وتعصب خود داری نمایند.



مونږ له شريعت پرته پلـه ګکلاره نلـرو، زمـونږ بيلابيل دښمنان د اسلامي امـارت د بـدرنګئ لپاره قسما قسم تبليغات کوي او په راتلونکي کې به هم دول دول حربې وکاروي، خـو مونږ بايد په صراط مستقيم برابر، هوښيار او بادرکـه واوسـو، د دښـمنانو د تبليغاتو او وسوسو اچولو پروا ونـه کـړو او پـواخې خپل مکلفيت او کـار تـه جدي متوجه واوسو.

**شهيد امير المؤمنين ملا اختر محمد منصور رحمه الله تعالى**

د اسلامي امارت ټولو مجاهدينو ته هدايت کـوم چې د ولـسي ښـرازي او ښـيګڼې د کـارونو لپاره زمينه برابره کړي او څـوک چې پدې برخه کې خدمت کوي د هغوئ د فعاليت او امنيت لپاره همکاري خپل مسئوليت وبولي څکه چې د ولس ښـرازي او سوکالي زمـونږ د جهاد د سـترو اهدافو څخه ده.

**اميرالمؤمنين شيخ الحديث هبة الله اخندزاده حفظه الله تعالى**




# تقويم ١٤٣٩ هـ.ق

١٣٩٦ – ١٣٩٧ هـ.ش

2017 – 2018 م

## محرم الحرام ١٤٣٩هـ (September – October 2017)

| ورځ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه Sat | | ٣ | ١٠ | ١٧ | ٢٤ |
| یکشنبه Sun | | ٤ | ١١ | ١٨ | ٢٥ |
| دوشنبه Mon | | ٥ | ١٢ | ١٩ | ٢٦ |
| سه‌شنبه Tue | | ٦ | ١٣ | ٢٠ | ٢٧ |
| چهارشنبه Wed | | ٧ | ١٤ | ٢١ | ٢٨ |
| پنجشنبه Thu | ١ | ٨ | ١٥ | ٢٢ | ٢٩ |
| جمعه Fri | ٢ | ٩ | ١٦ | ٢٣ | ٣٠ |

## صفر المظفر ١٤٣٩هـ (October – November 2017)

| ورځ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه Sat | ١ | ٨ | ١٥ | ٢٢ | ٢٩ |
| یکشنبه Sun | ٢ | ٩ | ١٦ | ٢٣ | |
| دوشنبه Mon | ٣ | ١٠ | ١٧ | ٢٤ | |
| سه‌شنبه Tue | ٤ | ١١ | ١٨ | ٢٥ | |
| چهارشنبه Wed | ٥ | ١٢ | ١٩ | ٢٦ | |
| پنجشنبه Thu | ٦ | ١٣ | ٢٠ | ٢٧ | |
| جمعه Fri | ٧ | ١٤ | ٢١ | ٢٨ | |

## ربيع الاول ١٤٣٩هـ (November – December 2017)

| ورځ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه Sat | | ٧ | ١٤ | ٢١ | ٢٨ |
| یکشنبه Sun | ١ | ٨ | ١٥ | ٢٢ | ٢٩ |
| دوشنبه Mon | ٢ | ٩ | ١٦ | ٢٣ | ٣٠ |
| سه‌شنبه Tue | ٣ | ١٠ | ١٧ | ٢٤ | |
| چهارشنبه Wed | ٤ | ١١ | ١٨ | ٢٥ | |
| پنجشنبه Thu | ٥ | ١٢ | ١٩ | ٢٦ | |
| جمعه Fri | ٦ | ١٣ | ٢٠ | ٢٧ | |

## ربيع الثاني ١٤٣٩هـ (December 2017 – January 2018)

| ورځ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه Sat | | ٥ | ١٢ | ١٩ | ٢٦ |
| یکشنبه Sun | | ٦ | ١٣ | ٢٠ | ٢٧ |
| دوشنبه Mon | | ٧ | ١٤ | ٢١ | ٢٨ |
| سه‌شنبه Tue | ١ | ٨ | ١٥ | ٢٢ | ٢٩ |
| چهارشنبه Wed | ٢ | ٩ | ١٦ | ٢٣ | ٣٠ |
| پنجشنبه Thu | ٣ | ١٠ | ١٧ | ٢٤ | |
| جمعه Fri | ٤ | ١١ | ١٨ | ٢٥ | |

## جمادى الاولى ١٤٣٩هـ (January – February 2018)

| ورځ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه Sat | | ٣ | ١٠ | ١٧ | ٢٤ |
| یکشنبه Sun | | ٤ | ١١ | ١٨ | ٢٥ |
| دوشنبه Mon | | ٥ | ١٢ | ١٩ | ٢٦ |
| سه‌شنبه Tue | | ٦ | ١٣ | ٢٠ | ٢٧ |
| چهارشنبه Wed | | ٧ | ١٤ | ٢١ | ٢٨ |
| پنجشنبه Thu | ١ | ٨ | ١٥ | ٢٢ | ٢٩ |
| جمعه Fri | ٢ | ٩ | ١٦ | ٢٣ | ٣٠ |

## جمادى الثانية ١٤٣٩هـ (February – March 2018)

| ورځ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه Sat | ١ | ٨ | ١٥ | ٢٢ | ٢٩ |
| یکشنبه Sun | ٢ | ٩ | ١٦ | ٢٣ | ٣٠ |
| دوشنبه Mon | ٣ | ١٠ | ١٧ | ٢٤ | |
| سه‌شنبه Tue | ٤ | ١١ | ١٨ | ٢٥ | |
| چهارشنبه Wed | ٥ | ١٢ | ١٩ | ٢٦ | |
| پنجشنبه Thu | ٦ | ١٣ | ٢٠ | ٢٧ | |
| جمعه Fri | ٧ | ١٤ | ٢١ | ٢٨ | |

## رجب المرجب ١٤٣٩هـ (March – April 2018)

| ورځ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه Sat | | ٦ | ١٣ | ٢٠ | ٢٧ |
| یکشنبه Sun | | ٧ | ١٤ | ٢١ | ٢٨ |
| دوشنبه Mon | ١ | ٨ | ١٥ | ٢٢ | ٢٩ |
| سه‌شنبه Tue | ٢ | ٩ | ١٦ | ٢٣ | |
| چهارشنبه Wed | ٣ | ١٠ | ١٧ | ٢٤ | |
| پنجشنبه Thu | ٤ | ١١ | ١٨ | ٢٥ | |
| جمعه Fri | ٥ | ١٢ | ١٩ | ٢٦ | |

## شعبان المعظم ١٤٣٩هـ (April – May 2018)

| ورځ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه Sat | | ٥ | ١٢ | ١٩ | ٢٦ |
| یکشنبه Sun | | ٦ | ١٣ | ٢٠ | ٢٧ |
| دوشنبه Mon | | ٧ | ١٤ | ٢١ | ٢٨ |
| سه‌شنبه Tue | ١ | ٨ | ١٥ | ٢٢ | ٢٩ |
| چهارشنبه Wed | ٢ | ٩ | ١٦ | ٢٣ | |
| پنجشنبه Thu | ٣ | ١٠ | ١٧ | ٢٤ | |
| جمعه Fri | ٤ | ١١ | ١٨ | ٢٥ | |

## رمضان المبارك ١٤٣٩هـ (May – June 2018)

| ورځ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه Sat | | ٤ | ١١ | ١٨ | ٢٥ |
| یکشنبه Sun | | ٥ | ١٢ | ١٩ | ٢٦ |
| دوشنبه Mon | | ٦ | ١٣ | ٢٠ | ٢٧ |
| سه‌شنبه Tue | | ٧ | ١٤ | ٢١ | ٢٨ |
| چهارشنبه Wed | ١ | ٨ | ١٥ | ٢٢ | ٢٩ |
| پنجشنبه Thu | ٢ | ٩ | ١٦ | ٢٣ | ٣٠ |
| جمعه Fri | ٣ | ١٠ | ١٧ | ٢٤ | |

## شوال المكرم ١٤٣٩هـ (June – July 2018)

| ورځ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه Sat | | ٢ | ٩ | ١٦ | ٢٣ |
| یکشنبه Sun | | ٣ | ١٠ | ١٧ | ٢٤ |
| دوشنبه Mon | | ٤ | ١١ | ١٨ | ٢٥ |
| سه‌شنبه Tue | | ٥ | ١٢ | ١٩ | ٢٦ |
| چهارشنبه Wed | | ٦ | ١٣ | ٢٠ | ٢٧ |
| پنجشنبه Thu | | ٧ | ١٤ | ٢١ | ٢٨ |
| جمعه Fri | ١ | ٨ | ١٥ | ٢٢ | ٢٩ |

## ذي القعدة الحرام ١٤٣٩هـ (July – August 2018)

| ورځ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه Sat | ١ | ٨ | ١٥ | ٢٢ | ٢٩ |
| یکشنبه Sun | ٢ | ٩ | ١٦ | ٢٣ | |
| دوشنبه Mon | ٣ | ١٠ | ١٧ | ٢٤ | |
| سه‌شنبه Tue | ٤ | ١١ | ١٨ | ٢٥ | |
| چهارشنبه Wed | ٥ | ١٢ | ١٩ | ٢٦ | |
| پنجشنبه Thu | ٦ | ١٣ | ٢٠ | ٢٧ | |
| جمعه Fri | ٧ | ١٤ | ٢١ | ٢٨ | |

## ذي الحجة الحرام ١٤٣٩هـ (August – September 2018)

| ورځ | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| شنبه Sat | | ٧ | ١٤ | ٢١ | ٢٨ |
| یکشنبه Sun | ١ | ٨ | ١٥ | ٢٢ | ٢٩ |
| دوشنبه Mon | ٢ | ٩ | ١٦ | ٢٣ | ٣٠ |
| سه‌شنبه Tue | ٣ | ١٠ | ١٧ | ٢٤ | |
| چهارشنبه Wed | ٤ | ١١ | ١٨ | ٢٥ | |
| پنجشنبه Thu | ٥ | ١٢ | ١٩ | ٢٦ | |
| جمعه Fri | ٦ | ١٣ | ٢٠ | ٢٧ | |

www.shahamat1.com | www.alemara1@gmail.com | www.twitter.com/alemarahweb90 | 0093708638285 | د فرهنګي چارو کميسيون